


د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## اتم ټولګی

اسلامي ښوونه او روزنه - اتم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.



# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښـتون او هـزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـواد به تل ځلیږي
په سینـه کې د آسیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیریـان، نـورستـانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اتم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af





# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# لړلیک



لومړی لوست

## د ونو کښینولو او کښت ارزښت

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ: رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا أَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا فَيَأْكُلُ مِنْهُ طَيْرٌ أَوْ إِنْسَانٌ أَوْ بَهِيمَةٌ إِلَّا كَانَ لَهُ بِهِ صَدَقَةٌ.» متفق علیه

### د راوي پېژندنه

د دې حدیث شریف د راوي نوم حضرت انس رضي الله عنه او د پلار نوم يې مالك انصاري دى. د پیغمبر ﷺ په کور کې لوی شوی او پوره لس کاله يې د پيغمبر ﷺ خدمت کړی دی. د فقهاوو او مجتهدو اصحابو له جملې څخه ګڼل کېږي. پيغمبر ﷺ ورته د اوږده عمر، په مال کې د برکت او جنت ته د تللو دعا کړې ده، له همدې امله يې د نورو اصحابو په پرتله د نبي کريم ﷺ څخه زيات احاديث روايت کړي دي. نوموړی د هجرت په ۹۳ کال د بصرې په ښار کې وفات شوی دی.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ۱. يَغْرِسُ: | ونې کېنوي |
| ۲. غَرْسًا: | کېنول |
| ۳. يَزْرَعُ: | کښت کړي |
| ٤. طَيْرٌ: | الوتونکې مرغه |
| ٥. بَهِيمَةٌ: | څاروی |





## د حدیث شریف معنا

له حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ وفرمایل: څوك چې ونې کینوي او یا کښت وکري او بیا له دغې ونې او کښت څخه مرغه یا انسان او یا څاروی وخوري، په ریښتیا چې دغه ټول ورته صدقه گرځي او ثواب یې ورکول کېږي.

## د حدیث شریف حکمت

د زیات شمېر ژوو ژوند په کرنې او زراعت پورې تړلی دی او بې له شکه هر ډول کرنه او زراعت د انسان په پایښت او د هغه د ژوند د چاپیریال په ښکلاکې اغېزه لري. هوا صافوي، د سیلابونو او زلزلو پر مهال ځمکه له خرابوالي څخه ساتي. زموږ د ژوند فضا پاکه او چاپیریال زرغونوي، ضرر رسونکي گازونه لکه کاربن دای اکساید جذبوي او اکسیجن تولیدوي.

هر ډول مېوې دانې چې زموږ د لومړنیو اړتیاوو څخه دي، د کرکیلې له لارې راځي کرکیلې ته پا ملرنې او له ځمکو څخه لازموگټو پورته کولو په نړۍ کې بې شمیره تمدونونه زېږولي دي.

نن هم چې کومو هېوادونو کرنې او مالدارۍ ته شا کړې، د لوږې له خطر او د ژوند د چاپیریال د ککړتیا او د سیلابونو او د ځمکو د ښویدلو له گواښ سره مخامخ دي. څرنگه چې کرنه او د چاپیریال شینوالی د تمدن له اړینو بیلگو څخه دي، نو له دې امله د پیغمبرﷺ په تعلیماتو کې ځانگړی مقام لري.




زده کوونکي دې په ډله ییزه توگه د ونو کښینولو د گټو په اړه بحث وکړي.

## د حدیث شریف ګټې

**۱. د چاپېریال ساتنه**: د ژوند لپاره غوره چاپېریال هماغه دی چې خورا سمسور وي، ښکلې اوبه او پاکه هوا ولري او د ټولو ساکښو د ژوند کولو لپاره چې يو د بل د ژوند د اړتياوو پوره کوونکي دي برابر وي، دغه ډول چاپېریال هغه وخت جوړېدای شي چې په ونو او کښتونو سمسور وي او سمسورتیا ته يې ځانګړې پاملرنه وشي.

**۲. د ونو کښېنولو ارزښت**: نیالګیو کښېنولو او کرنې ته پاملرنه یوازې د معاصرې زمانې غوښتنه نه ده، بلکې اسلام لا له پخوا په فکري او عملي لحاظ دغه مهم او اړین کار ته ځانګړې پاملرنه کړې.

**۳. د کرنې اهمیت**: کرنه د ژوند د تامین او له لوږې او بې کارۍ سره د مبارزې تر ټولو مهمه لار او د تمدن غوره بېلګه ده؛ ځکه پیغمبر صلی الله علیه وسلم مسلمانانو ته ځانګړې دستورونه ورکړې تر څو د ونو او کښتونو د له منځه وړلو څخه ځان وژغوري او د ساتلو هڅه یې وکړي.

**۴. نورو ته د خیر رسول**: مسلمانان باید داسې کارونه وکړي چې خیر یې یوازې بندګانو ته نه بلکې ټولو ساکښو ته ورسېږي او له دې لارې د ثواب مستحق وګرځي.

**۵. د غذایي توکو برابرول ثواب لري**: څرنګه چې يو انسان ته د غذا برابرول ثواب لري، همدارنګه د یو الوتونکي او یا ژوي لپاره یې برابرول هم ثواب لري.

**۶. د ونو کښېنول تل پاتې صدقه ده**: د ونو کښېنول او کرنه داسې یوه صدقه ده چې تر څو ونه او یا کښت موجود وي، د کرونکي لپاره به یې ثواب وي.




زده کوونکي دې دوه ډلې شي او د چاپېریال د ساتنې په باره کې دې سره بحث وکړي.

## ارزونه

۱. د حدیث شریف راوي معرفي کړئ.
۲. د حدیث شریف لنډه معنا بیان کړئ.
۳. د حدیث شریف ګټې ذکر کړئ.

## کورنۍ دنده

۱. د لوست حدیث له معنا سره حفظ کړئ.
۲. د چاپېریال خرابولو د ضررونو په باره کې یوه لنډه مقاله ولیکئ.



## دويم لوست

# په پلورلو کې رښتيا ويل

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِطَعَامٍ وَقَدْ حَسَّنَهُ صَاحِبُهُ، فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهِ فَإِذَا طَعَامٌ رَدِيءٌ، فَقَالَ: ((بِعْ هَذَا عَلَى حِدَةٍ، وَهَذَا عَلَى حِدَةٍ فَمَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا)). مسند أحمد.

### د راوي پېژندنه

د دې حديث شريف راوي عبدالله رضي الله عنه د عمر بن خطاب رضي الله عنه زوی د قريشو له قبيلې څخه دی. په کوچنيوالي کې يې ايمان راوړ او له خپل پلار سره يې مدينې منورې ته هجرت وکړ. د فقهاوو او علماوو اصحابو له جملې څخه دی.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ١. حَسَّنَهُ: | ښايسته کړی يې و |
| ٢. رَدِيءٌ: | خراب |
| ٣. بِعْ: | وپلوره |
| ٤. فَمَنْ غَشَّنَا: | چا چې له موږ سره دوکه وکړه |
| ٥. فَلَيْسَ مِنَّا: | له موږ څخه نه دی. |

## د حدیث شریف اجمالي معنا

د عبدالله ابن عمرؓ څخه روایت دی چې یوه ورځ پیغمبرﷺ د غلې د پلورونکي تر څنګ تېر شو چې غله یې (پیرودونکو) ته ښایسته کړې وه. (ښې او وچې دانې یې د ډیرۍ له پاسه او د خلکو مخې ته اچولې وې، خو لمدې او خرابې دانې یې ترې لاندې کړې وې). پیغمبرﷺ خپل لاس مبارک ورننویست، کړ ویې لیدل چې لمدې اوخرابې دانې یې لاندې پټې کړې دي، نو ورته یې وفرمایل:

ښه غله بیله او خرابه بیله وپلوره او پوه شه چې څوک موږ ته دوکه راکوي له موږ (مسلمانانو) څخه نه دی.

## د حدیث شریف حکمت

د نورو د مال د لاس ته راوړلو په مقصد دوکه کول او خلک غولول له هغو ناوړو خویونو څخه دي، چې د خلکو ترمنځ د دښمنۍ تخم شیندي، د اړیکو د خرابوالي او جګړو لامل ګرځي او د بې باورۍ فضا را منځ ته کوي، د وګړو مال، وخت او ابرو ته خورا زیان اړوي، اقتصادي چارې کمزورې کوي، د راکړې ورکړې اخلاق او د سوداګرۍ کار او بار خرابوي.

او که چېرې له صداقت څخه کار واخیستل شي، سوداګر ښه سامان وارد کړي او د خپل مال د عیب په ښکاره کولو یې په مناسب قیمت وپلوري، نو الله تعالی به یې د خپلو بندګانو په زړونو کې ګران او په ځان او مال کې به یې برکت واچوي، خلک به د دوکې، فریب او زیان منۍ له تشویشه خلاص شي او په یو بل به د باور او اعتماد په فضا کې ژوند وکړي.




په معاملاتو او سوداګرۍ کې باید دوکه او تېرایستنه ونکړو؟

## د حدیث شریف ګټې

۱. **د بازار کنترول**: لازمه ده چې د سوداګرۍ او تجارتي کړنو څارنه وشي، پکار ده چې چارواکي د بازار څارنه وکړي او د اخلاقو له پلوه کمزوري او فرصت غوښتونکي کسان پرې نږدي چې د چل، دوکې او تېرایستنې له لارو خلکو ته زیان ورسوي.

۲. **د معاملو د ونډوالی**: هر مسلمان سوداګر مکلف دی چې ښه او بد جنس جلا وپلوري او د خپل جنس اوصاف په څرګند ډول بیان کړي.

۳. **فریب او دوکه بدګڼل**: اسلام چې د عدالت، انصاف، ریښتینولۍ او امانتدارۍ دین دی، له فریبکار او هغه انسان څخه چې ټولنیزې اړیکې خرابوي او د دښمنیو لامل ګرځي، دومره کرکه لري چې هغه د کاملو مسلمانانو له جملې څخه نه بولي او دا اعلانوي چې خلک دې د ده دغه ناوړه عمل اسلام ته نه منسوبوي.

۴. **پر شفافیت او ریښتینولۍ ولاړ اقتصاد**

د ټولنې اقتصاد هغه وخت ښه پرمختګ کولای شي چې د مالونو تبادله او ګټه د دواړو خواوو پر مصلحتونو ولاړه وي او معامله په پاک ډول له انصاف څخه په ډکه فضاء د دواړو خواوو په کامل رضایت او خوښۍ سرته ورسېږي. دا ښکاره خبره ده چې په دوکه او چل ول باور او صداقت له منځه ځي او کوم لوری چې دوکه یې خوړلې وي هېڅکله خوښ او راضي نه وي.

له دې امله لازم دي چې د ټولنې ټول وګړي له دوکې او فریب څخه ځانونه وساتي او نور هم د دوکې او فریب له ضررونو څخه خبر کړي.




## ارزونه

۱. د عبدالله ابن عمرؓ ژوند په لنډه توګه بیان کړئ.
۲. دوکه په ټولنه کې کومې ناوړه پایلې رامنځته کوي؟ واضح یې کړئ.
۳. د حدیث شریف له ګټو څخه درې ګټې ولیکئ.
٤. لاندې کلمې معنا کړئ:
أ. حَسَّنَهُ.
ب. فَأَدْخَلَ يَدَهُ.
ج. فَمَنْ غَشَّنَا.

## کورنۍ دنده

۱. دغه عبارت حفظ کړئ (فَمَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا).
۲. له لاندې عنوانونو څخه یو عنوان غوره او د هغه په هکله یوه مقاله ولیکئ، چې له پنځو کرښو څخه کمه نه وي:
أ- په معاملو کې د فریبکارۍ ضررونه.
ب- په ټولنیز ژوند کې د دوکې ضررونه.
ج- په ازموینه کې دوکه (نقل) کول.





# د ګاونډي حقوق

عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ((مَازَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ)). متفق عليه.

## د کلماتو معنا

١- مَازَالَ: تل.
٢- الْجَار: ګاونډی.
٣- ظَنَنْتُ: ګومان مې وکړ.

## د حديث شريف اجمالي معنا

له حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبر ﷺ وفرمايل: تل به جبرئيل عليه السلام (د الله تعالی له لوري) ماته دګاونډي په هکله توصيه کوله، تردې چې ما فکر وکړ، چې په ميراث کې به ورته برخه ورکړي (يعنې د يو چا له مړينې وروسته به يې ګاونډی هم د نورو وارثانو په څير د مړي له مال څخه برخه اخلي).

## د حدیث شریف حکمت

انسان په خپل ژوند کې پر مور، پلار، اولادونو او دوستانو سربېره له ګاونډیو سره هم ځانګړې اړیکې لري.

تر ټولو لومړی هغه څوک چې په غم او ښادۍ کې زموږ پر شاوخوا را ټولېږي ګاونډیان دي، که د چا اړیکې له خپلو ګاونډیانو سره نیکې وي، له ډېرو خواوو څخه به په امن او ډاډ کې وي او د هغوی له تجربو څخه به ګټه اخلي.

او له ګاونډیانو سره د اړیکو د خرېدو په صورت کې به انسان له هر لوري د خطر احساس کوي او یو د بل له لیدلو څخه به کرکه کوي او ډېر ژر به یې ځاني، مالي او رواني ډاډ له منځه ولاړ شي.

له ګاونډیو سره د اړیکو ښه والی په خپلو کې د حقوقو په رعایت کولو پورې تړاو لري، بناءً پیغمبرﷺ په دې او نورو ډېرو احادیثو کې د ګاونډي مقام او منزلت په خورا تاکیدي اسلوب سره بیان کړی دی.




څرنګه کولی شو د خپلو ګاونډیانو حقوق پر ځای کړو؟ د دې سوال ځواب په ډله ییز ډول ورکړئ.

## د حدیث شریف ګټې

**۱. د وارث پر ځای د ګاونډي دریدل**: ګاونډی هغه چا ته وایي چې ستاسې په شاوخوا کې اوسېږي، اسلام د ګاونډي حقوقو ته دومره پاملرنه کړې ده، چې ګاونډی سره له دې چې میراث نشي وړای، خو د ټولنیزو حقونو له پلوه له هغه چا سره چې میراث وړي، برابر دی.

**۲. د ګاونډي پر حقوقو زیات ټینګار**: د اسلام ګران پیغمبرﷺ فرمایي: جبرئیل علیه السلام د الله تعالی په امر ما ته تل د ګاونډي په حق کې توصیه او لارښوونه کوله.

**۳. له جبرئیل علیه السلام سره د پیغمبرﷺ اړیکې**: جبرئیل علیه السلام د ملائکو له جملې څخه هغه ملائکه ده چې پیغمبرﷺ ته به یې وحې راوړله او د دیني کارونو په ور زده کړه کې یې د پیغمبرﷺ استاذي او ملګرتیا کوله.



**۴. ګاونډي ته د هر ډول تکلیف له رسولو څخه ځان ساتل**: که چېرې انسان له ګاونډي سره مرسته نشي کولای، نو لږ تر لږه ګاونډي ته له ضرر رسولو څخه باید ډډه وکړي، په بل حدیث شریف کې راغلي دي: ( هغه کس کامل مسلمان نه دی چې د هغه ګاونډی د ده له ضرر څخه په امن کې نه وي).




۱- لاندې کلمې معنا کړئ:

۱. مَازَالَ.

۲. یُوصِینِي.

۳. ظَنَنْتُ.

٤. سَیُوَرِّثُهُ.

۲. د حدیث شریف اجمالي معنا ووایاست.

۳. د حدیث شریف ګټې ووایاست.




۱. د پورتني لوست حدیث شریف له معنا سره حفظ کړئ.

۲. له لاندې موضوعاتو څخه په یوه موضوع کې یوه مقاله ولیکئ چې له شپږو کرښو څخه کمه نه وي.

أ- د ګاونډي حقوق.

ب- ګاونډي ته د ضرر رسولو ډولونه.

ج- ګاونډي ته د ضرر نه رسولو څرنګوالی.



## څلورم لوست

# ګاونډي ته د تکلیف رسولو ګناه

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ((وَاللهِ لَا يُؤْمِنُ، وَاللهِ لَا يُؤْمِنُ، وَاللهِ لَا يُؤْمِنُ. قَالُوا: وَمَا ذَاكَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: الْجَارُ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ. قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا بَوَائِقُهُ؟ قَالَ: شَرُّهُ.)) مسندأحمد

## د راوي پېژندنه

نوم يې عبدالرحمن د صخر دوسي زوی او په ابوهريرهﷺ باندې شهرت لري.
د هجرت په اووم کال يې مديني ته تشريف راوړ او د رسول اللهﷺ ملتيا يې غوره کړه.
پيغمبرﷺ ورته د احاديثو د حفظ د عا وکړه چې له برکته يې د نورو اصحابو په پرتله زيات شمېر احاديث له رسول اللهﷺ څخه روايت کړي دي او د هجرت په (۷۵) کال وفات شو.

## د کلماتو معنا

| | |
|---|---|
| ۱-لَا يُؤْمِنُ: | د پوره ايمان خاوند کيدای نشي. |
| ۲-الْجَارُ: | ګاونډی. |
| ۳-بَوَائِقَهُ: | د هغه له ضرر څخه. |

## د حديث شريف اجمالي معنا

له حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ وفرمايل: په الله تعالی قسم چې مؤمن نه دی، په الله تعالی قسم چې مؤمن نه دی، په الله تعالی قسم چې مؤمن نه دی.
صحابه وو وويل: څوک يا رسول الله؟ پيغمبرﷺ وويل: هغه څوک چې گاونډی يې له شر څخه په امان کې نه وي.

## د حديث شريف حکمت

ټولنه د وگړو، کورنيو، کليو او ښارونو څخه جوړېږي. که چېرې د کورنيو او کليو وگړي ټولنيز آداب مراعات کړي او کوښښ وکړي چې هېچا ته يې کوم ضرر ونه رسېږي، په ځانگړې ډول هغه څوک چې ورسره گاونډيتوب لري، که هغه د کور او کلي گاونډی وي او که د دفتر يا د کار د ځای، ځکه چې دغه ټول گاونډيان شمېرل کېږي، په دې صورت کې هېڅکله په ټولنه کې کومه ستونزه نه پيداکېږي او که چېرې پيدا هم شي ډېر ژر حل کېږي. په همدې بناء د اسلام مقدس دين د گاونډي احترام لازم گرځولی دی او هغه ته يې له ضرر رسولو څخه منع کړې ده.

## د حديث شريف گټې

**١. گاونډي ته ضرر رسول خورا لويه گناه او حرام کار دی،** ځکه چې پيغمبرﷺ پدې هکله سخت وعيد فرمايلی دی او د زيات ټينگار په خاطر يې د الله تعالی په پاک نوم درې ځلې قسم ياد کړ او ويې فرمايل: ((وَاللَّهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللَّهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللَّهِ لَا يُؤْمِنُ...)) چې دا گاونډي ته د ضرر رسولو د گناه په ډېر والي ښکاره دلالت کوي. سره له دې چې د (لَا يُؤْمِنُ) عبارت له مسلمان څخه د ايمان نفې کوي، خو د دې لپاره چې خلک څوک د گناه په کولو کافر و نه گڼي، علماء د دې عبارت معنا داسې کوي: (د کامل ايمان خاوند نه دی). بيا هم د حديث شريف له نص څخه څرگنده معلومېږي چې گاونډي ته ضرر رسول خورا لويه گناه ده.

**٢. نورو ته د دې گناه د لوی والي بيانول:** ځينې خلک چې د دې گناه له لوی والي څخه خبر نه وي، گاونډيانو ته په ضرر نه رسولو کې کومه ځانگړې پاملرنه نه کوي، په همدې بناء لازم دي، چې د دې گناه لوی والی او خطر خلکو ته په ډاگه بيان کړل شي او که چېرې خلک د دې گناه له لوی والي څخه خبر شي، نو ارو مرو به ورڅخه ډډه وکړي.



## فعالیت

په ټولګي کې په ګروپي شکل ګاونډي ته د ضرر او تکلیف رسولو ځینې مثالونه ووایاست.



## ارزونه

۱- د حدیث شریف راوي څوک دی؟ په لنډ ډول یې څرګند کړئ.

۲- د ګاونډیو ځینې حقوق بیان کړئ:

۳- لاندې کلمې معنا کړئ:

أ- لَا يُؤْمِنُ:

ب- الْجَارُ:

ج- بَوَائِقَهُ:



## کورنۍ دنده

کوم شیان د ګاونډي د ضرر او تکلیف لامل ګرځي؟ پدې اړه پنځه کرښې مقاله ولیکئ.



# پنځم لوست

## کينه لويه ګناه ده

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: (إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ، فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ.) رواه ابو داود.

## د کلماتو معنا

١- الْحَسَدَ: (له نورو څخه د نعمت د زوال هیله).
٢- إِيَّاكُمْ: ځان وساتئ.
٣- يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ: ښېګڼې خوري (له منځه يې وړي).
٤- الْحَطَبَ: لرګي.

## د حديث شريف معنا

له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: د کينې له بيمارۍ څخه ځان وساتئ ځکه چې کينه د سړي نيک عمل داسې خوري (له منځه وړي) لکه اور چې لرګي سوزوي او له منځه يې وړي.

## د حدیث شریف حکمت

د اسلام سپیڅلي دین مسلمانانو ته په مینې، ورور ګلوۍ، مرستې او یووالي امر کړی دی او له هر هغه څه چې د اړیکو د زیانمنېدو او ورته د ضرر رسولو لامل ګرځي، منع کړې ده.
دا چې کینه او حسد د بدګومانۍ، کرکې، ازار او تکلیف رسولو اصلي عامل دی، پیغمبرﷺ په کلکه ورڅخه منع فرمایلې ده.

## حسد څه ته وایې؟

حسد دا دی چې یو څوک د نورو د نعمتونو د زوال هیله کوي او پر نورو یې د خدای احسان نه لوربږي.

## غبطه څه ته وایي؟

غبطه دي ته وایي چې یو څوک د نورو د نعمت په څیر ځانته هم د هماغسې نعمت هیله کوي او د نورو د نعمت زوال نه غواړي، چې دا یو نیک او جایز کار دی.

## د حسد ضررونه

ا- حسد مینه، ورور ګلوي او ښېګڼې چې ایماني غوښتنې دي، له منځه وړي او پر نورو د ظلم او تېري لامل ګرځي.
ب- حسد د حسد کوونکي د زړه ناولتیا څرګندوي، ځکه چې دی هغه څه چې ځان ته یې خوښوي، نورو ته یې نه خوښوي.
ج- حسد انسان نا ارامول، ځکه چې حسد کوونکی همیشه په دې اندیښنه کې وي چې هغه فلانی ته ولې دومره نعمتونه ورکړل شوي دي او ماته نه دي را کړل شوي، هغه تل د نورو د هوساینې او د ځان د محرومتیا سوچونه کوي.




## فعالیت

د حسد او کینې ځینې نور ضررونه په ګوته کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

۱-د حسد حرام والی: پیغمبرﷺ په خورا سخت اسلوب له کینې کولو څخه منع کړې ده.
۲-حسد نیکي له منځه وړي: حسد سربیره پردې چې لویه ګناه ده، د حسد کوونکي نورې نیکۍ هم له منځه وړي.

## ارزونه

۱- لاندې کلمې معنا کړئ:
أ. إِيَّاكُمْ:
ب. يَأْكُلِ الْحَسَنَاتِ:
ج. الحَطَبَ:
۲- حسد تعریف او له غبطې سره یې توپیر واضح کړئ.
۳- د حسد ضررونه بیان کړئ.

## کورنۍ دنده

۱- د لوست حدیث شریف له معنا سره حفظ کړئ.
۲- د حسد ضررونه ولیکئ.





# د مور او پلار حقوق

عن عبد الله بن عمرو، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم «رِضَا اللهِ فِي رِضَا الْوَالِدَيْنِ، وَسَخَطُ اللهِ فِي و سَخَطِ الْوَالِدَيْنِ» رواه البيهقي في شَعب الإيمان.

## د راوي پېژندنه

دغه لوی او جليل القدر صحابي عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله تعالى عنه دی، نسب يې له نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره په کعب بن لؤي کې يو ځای کېږي.

دغه صحابي عالم، د قرآن کريم قاري او د احاديثو د حافظانو له جملې څخه دی، زيات شمېر احاديث يې روايت کړي دي او د هجرت په (٦٥) کال وفات شو.

## د کلماتو معنا

رِضَا اللهِ: د الله تعالی خوښي.

سَخَطُ اللهِ: د الله تعالی قهر او غوسه

## د حديث شريف معنا

د عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله تعالی عنه څخه روايت دی، چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د الله تعالی خوښي د مور او پلار په خوښۍ او د هغه قهر او غوسه د مور او پلار په قهر او غوسه کې نغښتې ده.

## د حديث شريف حکمت

الله تعالی د انسانانو حقيقي خالق دی، مور او پلار په عالم اسباب کې د خپل ماشوم د ودې لپاره زياتې ستونزې ګالي، دوی شپه او ورځ د خپل ماشوم لپاره د خوړو، جامو او د ژوند لپاره د مناسب ځای او سالمې تربيې د برابرولو په هڅه کې وي، له دې امله د الله تعالی په وړاندې د مور او پلار مقام او منزلت ډېر لوړ دی او په ډېرو ځايونو کې يې خپل حق د مور او پلار له حقوقو سره يو ځای ذکر کړې دی، همدا راز رسول اللهﷺ په دې حديث شريف کې هم د الله تعالی له حقوقو څخه چې يو يې د هغه خوښي تر لاسه کول دي د مور او پلار له حقونو سره يو ځای ذکر کړی دی، آن تر دې چې د مور او پلار د حق پر ځای کول يې د الله تعالی د حق پر ځای کول ګڼلي دي.

## له مور او پلار سره نېکي کول

له مور او پلار سره نيکي بايد د دوی په ژوند او هم د دوی له مرګ څخه وروسته دوام ومومي، کله چې دوی ژوندي وي اولادونه مکلف دي چې له دوی سره په نيکۍ، مهربانۍ، نرمه ژبه او ښو اخلاقو چلند وکړي، له هغو خبرو څخه چې دوی پرې خفه کېږي ډډه وکړي، د دوی په وړاندې لوړوالی ونه کړي، په نېکو کارونو کې د دوی اطاعت وکړي، د دوی غوښتنې پر نفلي عبادتونو مخکې کړي او هر وخت د دوی په خدمت کې واوسئ، د دوی د اړتياوو په پوره کولو کې له هر ډول کوښښ څخه دريغ ونه کړئ، دوی دواړه پر خپلې مېرمنې او اولادونو وړاندې وګڼئ، له دوی څخه د هغه څه غوښتنه ونه کړئ چې دوی يې توان نه لري، دوی ته فرياد ونه کړي، په نامه سره يې ياد نه کړي، د دوی له مرګ څخه وروسته په ډېر اخلاص د رحمت او مغفرت دعا ورته وکړي، که دوی له چا سره وعده کړې وي هغه بايد سرته ورسوي او د دوستانو او خپلوانو عزت يې وکړي.

## د حديث شريف ګټې

۱- د مور او پلار د خوښۍ د تر لاسه کولو فرضيت: څرنګه چې د الله تعالی خوښي د مور او پلار په خوښۍ پورې تړلې ده او د الله تعالی خوښي تر لاسه کول په هر انسان فرض دي، نو د مور او پلار خوښي تر لاسه کول هم فرض دي. له همدې امله يوه ورځ يو صحابي غوښتل چې په جهاد کې ګډون وکړي، نبي کريم صلی الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل: (آيا مور او پلار دې ژوندي دي؟

صحابي وویل: هو. نبي کریمﷺ ورته وفرمایل: ﴿ ولاړ شه د هغوی خدمت وکړه، جنت د مور د قدمونو لاندې دی﴾.

۲- د مور او پلار د غوسه کولو حرام والی: څرنګه چې د الله تعالی غوسه کول حرام دي او د الله تعالی غوسه د مور او پلار په غوسه کې ده، نو د مور او پلار غوسه کول هم حرام دي.

۳- نیکمرغي او بریالیتوب: د مور او پلار خوښي د نېکمرغۍ او بریالیتوب او د دې پر خلاف د دوی قهر او غوسه د انسان د بد بختۍ او ناکامۍ لامل ګرځي.




هغه کارونه چې د مور او پلار د خوښۍ او هغه کارونه چې د دوی د غوسې لامل ګرځي، په فردي او یا ډله ییز ډول بیان کړئ.




۱- لاندې کلمې معنا کړئ:
أ. الْوَالِدَیْنِ:
ب. رِضَا:
ج. سَخَط:

۲- اسلام د مور او پلار په حقونو باندې ولې دومره ټینګار کړی دی؟

۳- آیا له مور او پلار سره نیکي کول یوازې د دوی تر ژوند پورې تړلې دي؟




دغه عبارت «رِضَا اللهِ فِي رِضَا الْوَالِدَیْنِ، وَ سَخَطُ اللهِ فِي سَخَطِ الْوَالِدَیْنِ» له معنا سره حفظ کړئ.

موږ څرنګه کولای شو د مور او پلار خوښي تر لاسه کړو؟ پدې اړه یوه مقاله ولیکئ، چې له شپږو کرښو څخه کمه نه وي.




# د مور حق

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: (جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَنْ أَحَقُّ النَّاسِ بِحُسْنِ صَحَابَتِي؟ قَالَ: أُمُّكَ. قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: ثُمَّ أُمُّكَ. قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: ثُمَّ أُمُّكَ. قَالَ: ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ أَبُوكَ) متفق عليه

## د کلماتو معنا

مَنْ أَحَقُّ النَّاسِ: تر ټولو خلکو ډېر د استحقاق خاوند څوک دی.

بِحُسْنِ صَحَابَتِي: زما د ملګرتیا او نېک چلند.

## د حديث شريف معنا

له ابو هريرة رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چې يو سړی نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته راغی او عرض يې وکړ: پر ما باندې څوک د زيات خدمت او ښه چلند حقدار دی؟ نبي کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل: ستا مور. بيا هغه سړي پوښتنه وکړه: بيا څوک؟ نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ستا مور. بيا هغه پوښتنه وکړه: بيا څوک؟ نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ستا مور. هغه سړي بيا پوښتنه وکړه: بيا څوک؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفريل: بيا ستا پلار.

## د حديث شريف حکمت

مور له هر پلوه لکه: رواني، عاطفي، جسمي، د خپل ماشوم د خدمت لپاره ډېرې لويې قربانۍ ورکوي، له همدې امله مو په پورتني حديث شريف کې ولوستل چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم درې ځلې ځواب ورکړ چې تر ټولو خلکو د زيات خدمت او ښه چلند حقداره مور ده.

تر ټولو لوی تکليفونه چې مور يې د خپل اولاد په وړاندې ګالي عبارت دي له:

۱-د حمل تکليفونه: مور د حمل په وخت کې ډېر جسمي او رواني تکليفونه ګالي او د خپل بدن د هډوکو او وينې شيره خپل ماشوم ته ورکوي.

۲-د ولادت تکليفونه: د ولادت تکليفونه خورا درانه او ټکان ورکوونکي وي.

۳-د شيدو ورکولو د وخت تکليفونه: مور د خپلو غوښو او هډوکو زېښنل شوي څيزونه خپل ماشوم ته د شيدو په بڼه ورکوي او پر خپل ماشوم باندې له ټولو خلکو ډېره مهربانه وي، له هغه سره مينه کوي په خدمت يې نه ستړې کېږي، په خپل ماشوم غوسه نه کوي او دې ته سترګې په لاره وي چې ماشوم يې سالمه وده وکړي.

مور د اميدوارۍ په وخت کې ډېرې زياتې ستونزې ګالي، د زېږېدنې پر مهال له خطرناکو پړاوونو تيرېږي، د شيدو ورکولو او تربيه کولو پر وخت ډېرې ستونزې ګالي او د خپل ماشوم د ارامۍ لپاره له خپلو ډېرو أراميو څخه تيرېږي، له همدې امله دغه حديث شريف د خدمت او ښه چلند په اړه د مور حق د پلار له حق څخه زيات او مخکې ذکر کړی دی.

## د حديث شريف ګټې

**۱-د مور غوره والی او مخکې والی**: مور او پلار دواړه په خپل اولاد زيات حقونه لري، خو مور د ذکر شوو دلايلو په رڼا کې ډېر زيات حقونه او ځانګړی مقام لري اولاد بايد د مور اطاعت، په هغې باندې شفقت او مهربانۍ ته زياته پاملرنه وکړي.

**۲-د مور سره په نېکۍ کولو ډېر ټينګار**: ځکه چې نبي کريمﷺ مور درې ځلې ذکر کړې او په څلورم ځل يې پلار ذکر کړی دی، له دې څخه معلومېږي چې مور تر هر چا زياته د نېکۍ حقداره ده.



## ارزونه

۱- لاندې عبارتونه ترجمه کړئ:

مَنْ أَحَقُّ النَّاس:

بِحُسْنِ صَحَابَتِيَ:

۲- د حديث شريف د راوي په اړه معلومات ورکړئ.

۳- نبي کريم صلی الله عليه وسلم ولې د مور په حقونو ډېر ټينگار کړی دی؟

## کورنۍ دنده

۱- د حديث شريف معنا حفظ کړئ.

۲- زده کوونکي دې د مور د حقونو په اړه يوه مقاله وليکي، چې له پنځو کرښو څخه کمه نه وي.



اتم لوست

# په اسلامي شریعت کې معاملات[1]

اسلامي شریعت لکه چې د عقایدو، اخلاقو او عباداتو په هکله ارزښتناکې لارښوونې لري، د معاملاتو (راکړې ورکړې) په هکله یې هم ځانګړې احکام او آداب وضع کړي دي، تر څو خلک خپل معاملات په عدل، ریښتونولی او له درغلی او دوکې څخه لرې سرته ورسوي، نو لازمه ده چې هر مسلمان د معاملاتو له شرعي احکامو څخه خبر وي، روا او ناروا وپېژني او دا باور تر لاسه کړي چې د اسلامي ادابو او احکامو په پام کې نیولو سره معامله کول اجر او ثواب لري او د انسان په مال کې د برکت وسیله ګرځي.

## په اسلامي شریعت کې د معاملاتو ځانګړتیاوې

- د نورو خلکو شتمنیو ته احترام او پر هغو باندې له تېرې نه ځان ساتل.
- د حلال رزق د لاس ته راوړلو لپاره معاملات یوه وسیله ده.
- نیک اخلاق لرل.
- خپله ګټه او د نورو ګټې په پام کې نیول.
- په معامله کې صدق او ریښتینولي.
- په معامله کې له دروغ ویلو څخه ځان ساتل.
- په معامله کې د دواړو اړخونو رضایت.
- په معامله کې وضاحت او بیان.
- له هرې هغې کړنې څخه ډډه کول، چې د شخړې لامل ګرځي.
- له ټګۍ او دوکې څخه ډډه کول.
- له بې عدالتی، سود، ظلم او احتکار څخه ډډه کول.

## د تجارت (سوداګرۍ) آداب

مسلمان سوداګر باید لاندې آداب په پام کې ولري:

۱- د پلورلو او پیرودلو په شرعي احکامو پوهیدل.

۲- له هر ډول درغلیو څخه ځان ساتل.

---

۱- معاملات د معاملة جمع ده، معاملة په لغت کې راکړې ورکړې ته وایي او په اصطلاح کې هغه مالي تړون دی، چې د هغه په مقابل کې عوض اخیستل کیږي. لسان العرب ج ۹/مخ ۱۰٤.

۳- په تجارت کې داسې نیت درلودل چې د ځان او خپل عیال لپاره حلال رزق وګټې، پرته له دې چې بل چاته ضرر ورسوي.

٤- له قسم کولو څخه ځان ژغورل، په تېره په ناحقه قسم کول.

٥- خپلو دیني فرایضو او واجباتو ته وخت ورکول.

٦- د خپل توان په اندازه له بېوزلو سره مرسته کول.

۷- که د نصاب څښتن وي په خپل وخت د زکات اداکول.

۸- په خپلو ټولو کړنو او خبرو کې رښتینولي په پام کې نیول.

۹- د تبادلې په وخت کې د خپل جنس عیبونه بیانول.

۱۰- د خلکو ګټې باید په پام کې ونیول شي او د هغه څه له خرڅولو څخه ډډه وکړی شي چې خلکو ته په کې زیان رسیږي، لکه: شراب او نور مخدره او نیشه يي توکي.

## د رښتیني او امین تاجر غوره والی

له ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی، چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: {اَلتَّاجِرُ الصَّدُوقُ الْأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ}[1]

**ترجمه**: رښتونی او امانتکار تاجر به له نبیانو، صدیقینو او شهیدانو سره په جنت کې یو ځای وي.




لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ:

۱- په اسلام کې د معاملاتو ځانګړتیاوې بیان کړئ.

۲- هر زده کوونکی دې د تجارت له آدابو څخه درې آدابه ذکر کړي.

۳- د رښتیني او امین تاجر غوره والی بیان کړئ.




ستاسو په نظر یو تاجر باید کوم آداب مراعات کړي؟ په دې هکله یوه لنډه مقاله ولیکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

---

۱- المستدرک للحاکم ۲/ ۷.



نهم لوست

# د بيعې فقهي اصطلاحات (۱)

مخکې له دې چې د بيعې مسائل په تفصيل سره وڅېړو، مناسبه ده چې ځينې هغه اصطلاحات چې د بيعې په بحثونو کې تکراريږي وپيژنو، تر څو د مطالبو او موضوعاتو پوهيدل راته اسان شي.

## بَيع

د خرڅوونکي او اخيستونکي په رضايت د يو مال په بل مال بدلولو ته بيعه وايي.

## بايع

بايع: پلورونکی (خرڅوونکی).

## مُشتَرِي

مشتري: اخيستونکی.

## اِيْجَاب

ايجاب هغه لومړۍ خبره ده چې د عقد (تړون) کولو لپاره ويل کيږي، لکه چې خرڅوونکی داسې ووايي: دا قلم مې په لس افغانۍ درکړ.

## قَبُول

قبول هغه دويمه خبره ده چې له ايجاب څخه وروسته د عقد د منلو لپاره ويل کيږي، لکه د پورتني مثال په ځواب کې چې اخيستونکی ووايي: ما په لس افغانۍ واخيست.

## عَقْد

په لغت کې تړلو ته وايي او په اصطلاح کې له هغه اتفاق څخه عبارت دی چې د دوو طرفونو تر مينځ د يوه کار د اجرا کولو لپاره ترسره کيږي، لکه د بايع او مشتري تر مينځ د بيعې تړون .

## مَال

مال هغه شی دی چې قيمت ولري او د تبادلې او ملکيت قابل وي.

## مُتَقَوَّم مال

متقوم مال هغه مال دی چې شرعا قيمت ولري او ګټه اخيستل ورڅخه روا وي.





## مَنْقُول

منقول هغه مال دی چې له یو ځای څخه یې بل ځای ته وړل ممکن وي، لکه: نغدې پیسې، جامې او داسې نور.[1]

## غَیْرِ مَنْقُول (عقارات)

غیر منقول هغه مال دی چې له یو ځای څخه یې بل ځای ته نقلول او وړل ممکن نه وي، لکه: کورونه، ځمکې او باغونه.[2]




د پورتنیو اصطلاحاتو په هکله یو له بل څخه پوښتنې وکړئ.



لاندې اصطلاحات تعریف کړئ:

أ- ایجاب.

ب- قبول.

ج- منقول مال.

د- متقوم مال.

د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کېږدئ:

۱. قبول: هغه خبره ده چې لومړی د عقد کولو لپاره کېږي ( )

۲. عقد: له هغه اتفاق څخه عبارت دی چې د دوو طرفونو تر منځ د یوه کار د اجرا کولو لپاره ترسره کېږي. ( )

۳. بیعه: په ګټو او منافعو د مال بدلولو ته ویل کېږي. ( )




د درس اصطلاحات په لنډه توګه ولیکئ.

---

۱- مجلة الأحكام العدلية - (ج ۱ / ص ۲۹)

۲- مجلة الأحكام العدلية - (ج ۱ / ص ۳۱)



## لسم لوست

# د بيعې فقهي اصطلاحات (۲)

په تیر لوست کې مو ځینې هغه اصطلاحات وپیژندل چې په بیعه کې تکراریږي، ځینې نور يې نن په دې لوست کې پیژنو.

### مبیعه

هغه جنس ته ویل کیږي چې ثمن د هغې په مقابل کې واقع کیږي او په بیعه کې اصلي موخه وي.

### ثمن

هغه مال ته ویل کیږي چې د مبیعې په مقابل کې واقع کیږي او غالبا نقود او پیسې وي.

### نُقُود

نقود د نقد جمع ده، په اصل کې سرو زرو او سپینو زرو ته ویل کیږي، خو اوس پیسې هم د نقودو په نامه یادیږي، کومې چې ددې دواړو په ځای استعمالیږي، لکه: بانک نوټونه او فلزی پیسې.

### کَیْلِي

کیلي هغه شیان دي چې په پیمانه کولو سره معلومیږي، لکه: پټرول، اوبه او داسې نور مایعات.(اوس د دې رایج واحد ته لیټر ویل کیږي.)

### وَزني

وزني هغه شیان دي چې په وزن کولو (تللو) سره معلومیږي، لکه: سره زر، سپین زر، غوښه ، د سوځولو لرګي او داسې نور، (اوس د دې رایج واحد ګرام او کیلو ګرام دی).

### عَدَدِي

عددي هغه شیان دي چې اندازه یې په عام ډول په شمارلو سره معلومیږي.

### ذَرْعِي

ذرعي هغه شیان دي چې اندازه یې د طول په واسطه معلومیږي، لکه: ټوکرونه. (په اوسنی زمانه کې د دې د اندازه کولو واحد متر دی).

## مشاع

هغه مشترك مال دی چې لا ویشل شوی نه وي ، خو د هرشریک برخه د (فیصدۍ او یا نصف، ربع او ثمن ...) د سهم په اساس معلومه وي. لکه: سهامي شرکتونه، میراثي مالونه چې تقسیم شوي نه وي.

## مِثلِي

مثلي هغه شی دی چې مثل یې په بازارکې پیداکیږي او ډېر توپیر سره نه لري، لکه: غنم، اوربشې او داسې نور، ځکه چې لږ توپیر په قیمت کی ډېر فرق نه راولي، غټ او واړه په یوه بیه خرڅیږي، لکه وزني، کیلي او متقارب عددي شیان.

## قِیَمِي

قیمي هغه شیان دي چې افراد یې په بازارکې سره متفاوت وي او قیمتونه یې هم سره تفاوت ولري، لکه: اسونه، پسونه، غواګانې او داسې نور.

## مُتَقَارِبَ عَدَدِیَّات

دا هغه شیان دي چې په بازارکې په شمېرلو خرڅیږي او د افرادو تر مینځ یې په قیمت او بیه کې توپیر نه وي، دا ټول له مثلیاتو څخه ګڼل کیږي، لکه: هګۍ، چارمغز او داسې نور.

## مُتَفاوِت عَدَدِیَّات

دا هغه شیان دي چې په شمېرلو سره نه پلورل کیږي، ځکه چې د افرادو تر مینځ یې په قیمت او بیه کې ډېرتوپیر موجود وي، دا ټول له قِیمِیّاتو څخه شمېرل کیږي، لکه: کدو، هندوانې او داسې نور.




له متقاربو عددي شیانو څخه د پنځو او له متفاوته عددي شیانو څخه د شپږو نومونه واخلئ.

## ارزونه

د لاندې اصطلاحاتو فرق بیان کړئ:

۱. مشاع او غیر مشاع مال.

۲. متقارب عددیات، او متفاوت عددیات.

۳. مثلي او قیمي.

٤. کیلي او وزني.

٥. ذرعي او عددي.

د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کېږدئ:

۱- مشاع مال: هغه مشترک مال دی، چې ویشل شوی نه وي، خو د هرشریک برخه پکې د سهم په اساس معلومه وي. (   )

۲- متقارب عددیات: هغه د شمیرلو وړ شیان دي چې د افرادو ترمینځ یې په قیمت کې توپیر وي. (   )

۳- مبیعه: هغه شي ته ویل کیږي چې په بیعه کې اصلي مقصود وي (   ).

## کورنۍ دنده

د درس اصطلاحات په مختصره توګه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.



يوولسم لوست

# د بيعې فقهي اصطلاحات (۳)

په تيرو دوو لوستونو کې مو ځينې هغه فقهي اصطلاحات وپيژندل، چې په بيعه کې تکرارېږي، پاتې نور به يې په دې لوست کې وپيژنو.

## رُكْنُ الْبَيْع

د بيعې رکن: ايجاب او قبول دی چې د عقد په صيغه هم ورڅخه تعبير کېږي.

## ثمن مسمى

مسمى ثمن هغه ثمن دی چې د عقد په وخت کې په څرګنده توګه وټاکل شي او د دواړو خواوو اتفاق پرې وشي، که هغه د بازار د نرخ مطابق وي او يا له هغه سره توپير ولري.

## قيمت

قيمت د يوه شي حقيقي ارزښت دی.

## تأجيل

د دَيْن (پور) مُعَلَّقْ کول او تر معلوم وخته يې ځنډول.

## تقْسِيْط

په متعددو قسطونو د يوه مبلغ تسليمول.

## دیْن

دين (پور) هغه مال دی چې د چا په ذمه ثابتېږي (وربه غاړه کېږي)، لکه يوه اندازه پيسې چې څوک له چا څخه پور واخلي.[۱]

---

۱- مجلة الأحكام العدلية - (ج ۱ / ص ۳۳)

### غَبْن فَاْحِش

له خپل نرخ څخه په ډېر لوړ نرخ د یوشي خرڅولو ته ویل کېږي، د مثال په ډول، د یو کیلو گاز مروج قیمت په بازار کې (۳۰) افغانۍ وي او یو پلورونکی یې په (۵۰) افغانۍ په چا خرڅ کړي.[۱]




أ- لاندې اصطلاحات تعریف کړئ:

۱- ثمن.

۲- قیمت.

۳- تاجیل.

٤- بایع.

۵- مشتري.

ب- د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کېږدئ:

۱- تقسیط: د دَیْن (پور) په جلا جلا وختونو کې اداء کول. ( )

۲- دین هغه مال دی چې په ذمه ثابتېږي. ( )




د درس عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

---

۱- مجلة الأحكام العدلية - (ج ۱ / ص ۳٤)



# دولسم لوست

## بيع

انسانان په خپل ورځني ژوند کې دې ته اړ دي، چې يو له بل سره راکړه ورکړه ولري، څو خپلې اړتياوې له دې لارې پوره کړي، د فقهې کتابونو دغه چارې د بيعې تر عنوان لاندې بيان کړې دي.

### د بيعې تعريف

بيعه په لغت کې: مطلق بدلولو ته ويل کېږي.

بيعه شرعاََ: (د بايع او مشتري په رضا ) په مال باندې د مال بدلولو ته وايي.[١]

### د بيعې حکم

د بيعې په نتيجه کې د مشتري ملکيت په مبيعه کې او د بايع ملکيت په ثمن کې ثابتېږي.

### د بيعې رکن[٢]

د بيعې رکن ايجاب او قبول دی.

### د بيعې د تړون لیارې

د بيعې تړون په دوو طريقو سره تر سره کېږي:

١. د خبرو له لارې.

٢. اوکله د عمل او کړنې له لارې.[٣]

### د خبرو له لارې بيعه کول

هغه ده چې د ايجاب او قبول وسيله تر سره شي.

---

١- فقه المعاملات - (ج ١ / ص ٧)

٢- درر الحکام شرح غرر الأحکام - (ج ٦ / ص ١٥١)- تبيين الحقائق شرح کنز الدقائق - (ج ١٠ / ص ٢٢٨)

٣- رد المحتار - (ج ١٨ / ص ٢٠٥)- العناية شرح الهداية - (ج ٨ / ص ٣٦٨)





## بیعه په فعل سره یا د تعاطی بیعه[1]

دا بیعه په عملي راکړه ورکړه باندې تر سره کېږي، که څه هم ایجاب او قبول ورسره نه وي، لکه: د ډوډۍ پلورونکي مخ ته یو څوک د ډوډۍ مروج قیمت ږدي او یوه ډوډۍ ورڅخه اخلي.




د لفظ د ویلو په ځای په ورکړې سره د بیعې څو مثالونه ووایاست او همدا راز د بیعې ترون عملا تمثیل کړئ.




لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د دې لوست اصطلاحات بیان کړئ.

۲. د بیعې حکم څه دی؟

۳. د بیعې رکن څه دی؟ او په څه شی بیعه ترسره کېږي؟

لاندی جملې په مناسبو کلمو بشپړې کړئ:

بیعه په لغت کې: ................... او شرعاً: ...................ته وایي.




د دې لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

---

۱- رد المحتار - (ج ۱۸ / ص ۱۹۷)

# د بیعې شرطونه

وروسته له دې چې د بیعې له تعریف او د ترسره کیدلو له څرنګوالي سره آشنا شوو، غواړو چې د بیعې شرطونه وپیژنو، ځکه د شرط پاتې کیدل د بیعې د صحت مانع ګرځي او د شرایطو مراعاتول د شخړو مخنیوی کوي.

شرط په لغت کې: علامې او نښې ته وایي.[1]

په اصطلاح کې: شرط دې ته ویل کیږي چې د هغه په وجود پورې د بل شي وجود تړلی وي او له هغه څخه پرته نه ترسره کیږي، لکه اودس چې د لمانځه لپاره شرط دی.[2]

## د بیعې شرطونه په څلور ډوله دي:

۱. د انعقاد شرطونه.[3]

۲. د نفاذ شرطونه.[4]

۳. د صحت شرطونه.

٤. د لزوم شرطونه.[5]

## لومړی

د انعقاد شرطونه په لاندې ډول دي:

۱. عقد کوونکی باید د عقل او پوهې خاوند وي، نو د لیوني او ناپوهه کوچني، چې د ښه او بد تمیز نه شي کولای، عقد نه صحیح کیږي.

---

۱- العنایة شرح الهدایة - (۱ / ٤١٤)
۲- رد المحتار - (ج ۳ / ص ۲٤۲)
۳- درر الحکام شرح مجلة الأحکام - (۱ / ۹۲)
٤- درر الحکام شرح مجلة الأحکام - (۱ / ۹۵)
۵- رد المحتار - (ج ۱۸ / ص ۱۹۹)

۲. عقد کوونکي باید له یوه کس څخه زیات وي، یعنې په بیعه کې له دواړو اړخونو څخه یو تن عاقد نه شي جوړیدای چې هم خرڅوونکی او هم اخیستونکی اوسي، ځکه یو شخص هم قابض (اخیستونکی) او هم ورسپارونکی (خرڅوونکی) نشي کېدلای.[1]

۳. قبول باید له ایجاب سره موافقت ولري، نو که ایجاب یو شی وي او قبول بل شی، دا بیعه نه تر سره کېږي، لکه بایع چې ووایي: ما دغه کتاب په لس افغانۍ در باندې خرڅ کړ او مشتري ووایي: ما هغه قلم په لس افغانۍ درڅخه واخیست.

٤. ایجاب او قبول باید په داسې الفاظوسره وي چې في الحال د عقد د سرته رسولو او د رضایت معنا ورکړي، که داسې الفاظ وي چې د وعدې مفهوم افاده کوي، پرهغو الفاظو بیعه نه منعقده کېږي. لکه چې ووایي: زه به دا قلم په تا باندې خرڅ کړم او یا دا چې اخیستونکي ووایي: زه به دا قلم له تا څخه واخلم.

٥. د متعاقدینو د بیعې د مجلس یو والی: له د متعاقدینو څخه یو په همدې مجلس کې دا بیعه قبوله نه کړي، دا عقد او بیعه نه ترسره کېږي.

٦. د مبیعې شتون: مبیعه باید شتون ولري، له دې امله د هغه شي خرڅول چې موجود نه وي، نه ترسره کېږي، لکه د هغې میوې بیعه چې تر اوسه یې ګل نه وي ښکاره کړی.

۷. مبیعه باید متقوم مال وي، نو له هم دې امله د شرابو او خنزیر بیعه د مسلمان لپاره نه صحیح کېږي.

۸. مبیعه باید د پلورونکې ملکیت وي.

۹. مبیعه باید د تسلیم کیدلو قابلیت ولري، د هغه شی بیعه نه منعقده کېږي، چې بایع یې له تسلیمولو څخه عاجز وي، لکه په هوا کې د یوه مرغه خرڅول.

---

۱- بدائع الصنائع - (٥ / ١٣٦)






زده کوونکي دې په ګروپي ډول د بیعې د شرطونو په هکله یو له بل سره د ښوونکي په مرسته مباحثه وکړي.

## دویم

## د نفاذ شرطونه

۱.ملکیت یا د ملکیت ولایت: د چا په ملك او مال کې د تصرف حق لرل په دوو طریقو ترلاسه کیدای شي.[1]

آ-د نیابت له لارې: چې د مال یا حق خاوند د ځان پرځای بل څوك وټاکي لکه وکالت.

ب-د شارع له لارې: هغه حق چې د شارع له خوا چاته ورکړشوی وي، لکه د پلار ولایت د کوچني زوی په ملك کې.

۲.په مبیعه کې باید له بایع پرته د بل چا حق نه وي.[2]

## دریم

## د بیعې د صحت شرطونه

۱. بیعه باید په مؤقته توګه نه وي، نو که داسې ووایي: (دغه قلم د یوې ورځې لپاره خرخوم) دغه بیعه نه صحیح کیږي .

۲. مبیعه باید معلومه او مشخصه وي، که بایع ووایی: (له رمې څخه مې یو پسه درباندې خرڅ کړ) او معلوم یې نه کړي، دا بیعه صحیح نه ده، ځکه چې د مجهول شي پلورل د شخړو لامل ګرځي.

۳. قیمت باید معلوم وي، که بایع مشتري ته داسې ووایي: (دا آس مې در باندې خرڅ کړ په څومره چې ارزښت لري)، او معلوم یې نه کړي، دا بیعه صحیح نه ده.

٤. بیعه باید له فاسد شرط څخه خالي وي، مثلا ووایي: (دغه کور دربانديې په دې شرط خرڅوم چې

---

۱- رد المحتار - (۱۰ / ۲٦٥)

۲- رد المحتار - (ج ۱۸ / ص ۲۰۱)

هغه په کرایه ور نه کړي).

۵.بیعه باید په رضایت سره ترسره شوې وي، بناءً د مُکره (د هغه چا بیعه چې زور وربانديې شوی وي) بیعه فاسده ده.[۱]

## څلورم
## د بیعې د لزوم شرطونه

یوه بیعه هغه وخت لازمېږي چې په هغې کې خیارونه، لکه: (خیار شرط او خیار رؤیت) نه وي ایښودل شوی او که ایښودل شوي وي، هغه به بشپړ شوي وي.[۲]




لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ:

۱.د بیعې شرطونه په څو ډوله دي؟ بیان يې کړئ.

۲.د بیعې د انعقاد شرطونه ووایاست.

۳.د بیعې د نفاذ شرطونه کوم دي؟

٤.د بیعې د صحت شرطونه بیان کړئ.




د دې درس عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

---

۱- رد المحتار - (ج ۱۸ / ص ۲۰۳)- البحر الرائق - (۵ / ۲۸۲)

۲- البحر الرائق شرح کنز الدقائق - (ج ۱۵ / ص ٤۳)



## څوارلسم لوست

# د بيعې ډولونه (۱)

بيعه ګڼ ډولونه لري او هر ډول يې ځانګړی حکم لري، نو اړينه ده چې بيعه د حکم له پلوه وپېژنو.

### د بيعې ډولونه

بيعه د حکم له نظره په پنځه ډوله ده:

**۱. صحيحه نافذه لازمه بيعه**[1]

دا هغه روا بيعه ده چې د اصل او وصف دواړو له مخې صحيحه وي، نه د چا حق ورپورې تړلی وي او نه په کې له خيارونو څخه کوم خيار موجود وي.

**حکم يې**: له تړون څخه وروسته سمدلاسه د مشتري ملکيت په کې ثابتيږي.[2]

**۲. صحيحه نافذه غير لازمه بيعه**

دا هغه روا بيعه ده چې د کوم چا حق ورپورې تړلی نه وي، خو له خيارونو څخه پکې يو خيار، شرط ګرځول شوی وي.

حکم يې: په دې صورت کې مبيعه د بايع (پلورونکي) له ملکيت څخه نه خارجيږي او د مشتري په ملکيت کې تر هغه نه داخليږي، تر څو چې خيار شتون ولري، همداراز د ثمنو حکم هم دی.

**۳. صحيحه موقوفه بيعه**

دا هغه بيعه ده چې د بل چا حق ورپورې تړلی وي، لکه يو څوک چې د بل چا مال د هغه له اجازې پرته خرڅ کړي.

حکم: په دې صورت کې د ملکيت ثابت کيدل د اصلي مالك په اجازې پورې تړلي دي.[3]

**۴. فاسده بيعه**

دا هغه بيعه ده چې د اصل له مخې صحيحه وي، خو د صفت له مخې صحيحه نه وي، يعنې د صحت کوم شرط په کې نه وي مراعت شوی.

---

۱- صحيحه بيعه هغه بيعه ده چې په روا توګه، د ايجاب او قبول له لارې د مال بدلول په مال سره ترسره شي او اثر (ملکيت) يې په مبيعه او ثمن کې څرګند شي.

۲- درر الحكام شرح مجلة الأحكام - (۱ / ۹٥)- رد المحتار - (۱۸ / ۱۸٥).

۳- شرح المجلة الأتاسي: ۳٤۳- بدائع الصنائع- (۱۱ / ٤۹٤) البحر الرائق - (۱٥ / ٤۸)

**د فاسدې بیعې حکم**: په مبیعه یا ثمنو کې ملکیت په قبضولو سره ثابتېږي، په دې صورت کې د مبیعې او ثمن په قبض کولو سره ملکیت ثابتېږي، خو متعاقدین هر یو کولای شي چې بیعه فسخه کړي، څو فساد لرې او د شخړو مخنیوی وشي، لکه په ثمن کې جهالت او یا کوم بل داسې شرط کېښودل چې د بیعې د تقاضا خلاف وي.

## ۵. باطله بیعه

دا هغه بیعه ده چې له سره صحت نه لري، هغه داسې چې:

أ-د انعقاد کوم شرط په کې نه وي، لکه د لیوني بیعه ، یا د داسې ماشوم بیعه چې د ښه او بد تمیز ونه لري.

ب-مبیعه مال نه وي، لکه په اوسنی زمانه کې د انسان خرڅول.

**د باطلې بیعې حکم**: په باطله بیعه کې ملکیت نه ثابتېږي.[1]




زده کونکي دې په پنځو ډلو وویشل شي، بیا دې هره ډله د بیعې د لاندې ډولونو صورتونه بیان کړي :

۱- باطله بیعه. ۲ - فاسده بیعه . ۳ – نافذه لازمه بیعه٤ – نافذه غیر لازمه بیعه. ٥ –موقوفه بیعه.




۱.بیعه څو ډولونه لري؟

۲ .نافذه بیعه کومه بیعه ده؟

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱.باطله بیعه: دا هغه بیعه ده چې ..................................................

۲.فاسده بیعه: د اهغه بیعه ده چې ..................................................




د بیعې انواع او احکام په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

---

۱- درر الحکام في شرح مجلة الأحکام - (۲ / ۳۱۰)- الجوهرة النیرة.



# پنځلسم لوست

## د بیعې ډولونه (۲)

په تېر درس کې مو بیعه د حکم له پلوه وپېژندله، اوس غواړو چې بیعه د مبیعې او بیا د ثمنو له نظره وپېژنو.

## د مبیعې له نظره د بیعې ډولونه

بیعه د مبیعې له نظره په څلور ډوله ده:

۱- **مطلقه بیعه**: مطلقه بیعه هغه ده چې بې له کوم قید څخه ذکر شي او له ځان سره لکه د صرف، سلم او داسې نور قیدونه ونه لري، او دا بیعه د جنس خرڅول دي په مطلقو ثمنو، لکه: سپین زر، سره زر، بانک نوټونه او فلزي پیسې.

دا بیعه د مشهورو بیعو له جملې څخه شمیرل کېږي او له همدې امله ورته (کامله) بیعه ویل کېږي.[1]

۲- **د صرف بیعه**: دا د نغدو بیعه ده په نغدو باندې، لکه په سرو زرو چې سپین زر، یا په افغانیو کالدارې، ډالر یا نور واخیستل شي.

۳- **مقایضه بیعه**: دا د جنس بیعه ده په جنس باندې، لکه په یوه کمپیوټر چې موټر سایکل واخیستل شي.

۴- **د سلم بیعه**: دا بیعه د مؤجل ده په معجل باندې، پدې معنا چې قیمت او پیسې سمدلاسه واخیستل شي او جنس (مبیعه) څه موده وروسته ورکول کېږي چې په ثمنو کې په عاجله (سمدلاسه) توګه او په مثمن (مبیعه) کې په آجله (څه ځنډ وروسته) توګه ملک ثابتیږي.[2]





### فعالیت

د بیعې په پورتنیو څلورو ډولونو کې فکر وکړئ او یو له بل سره یې توپیر په ګوته کړئ.

## د ثمنو له نظره د بیعې ډولونه

### بیعه د ثمنو له نظره په څلور ډوله ده

۱. **مرابحه**: په معلومه ګټه باندې د مال پلورلو ته د مرابحې بیعه وایي.

لکه چې یو سړی ٤٥ کیلو اوړه په ۱۰۰۰ افغانیو واخلي او ووایي چې دغه وړه په ۱۰۰ افغانیو ګټه

۱- تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق - (ج ۱۱ / ص ۳۷۲)

۲- المرجع السابق. بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۱۱ / ص ۵۲)

خرڅوم او بيا يې په ۱۱۰۰ افغانيو باندې خرڅ کړي.
۲ .**تولیه**: په خپل سر د یوشي خرڅولو ته د تولیې بیعه وايي چې نه په کې ګټه وي او نه نقصان.
لکه چې یو سړی ٤٥ کیلو اوړه په ۱۰۰۰ افغانیو واخلي او ووايي چې دغه اوړه په خپل سر خرڅوم او بيا يې په ۱۰۰۰ افغانيو باندې خرڅ کړي.
۳ .**وضيعه**: په معین تاوان باندې د مال پلورلو ته د وضیعې بیعه وايي.
لکه په پورتني مثال کې چې ووايي: زه دغه اوړه په ۱۰۰ افغانيو تاوان خرڅوم او بيا هغه اوړه په ۹۰۰ افغانيو خرڅ کړي.
۴ .**مساومه**: دا هغه بیعه ده چې جانبین په کې په یوه قیمت سره اتفاق وکړي، خو د ګټې او نقصان او یا د اخیستلو د قیمت ذکر پکې له سره نه کوي چې په بازارونو کې اوس اکثره په همدې طریقې راکړه ورکړه کیږي . [۱]




أ-لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:
۱-د مبیعې له نظره بیعه په څو قسمه ده؟
۲-د سلم بیعه کومه بیعه ده؟
۳-د ثمنو له نظره بیعه په څو ډوله ده؟
٤-د مرابحې بیعه کومه بیعه ده؟
ب-د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کیږدئ:
۱.مقايضه بيعه:دا د جنس بيعه ده په جنس باندې.(   )
۲.د تولیې بیعه: په خپل سر د یوه شي خرڅولو ته د تولیې بیعه وايي.(   )
۳.د وضیعې بیعه:په معینه ګټه باندې د مال پلورلو ته د وضیعې بیعه وايي.(   )




د بیعې اقسام د مبیعې او ثمن په نظر کې نیولو سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

---

۱- بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع - (ج ۱۱ / ص ٥۲)



شپاړلسم لوست

# خیَار
# (د خیار شرط تَعریف او احکام)

په بیعه کې د خلکو د ضرورت له مخې ځینې خیارونه روا ګرځول شوي دي چې له دې جملې څخه مهم یې خیار شرط، خیار رویت او خیار عیب دي، غواړو چې په دې لوست کې خیار شرط وپیژنو.

## د خیار شرط تعریف:

په لغت کې: خوښولو، ټاکلو او واک لرلو ته وایي.

په اصطلاح کې: خیار شرط هغه واک او اختیار دی چې یو جانب او یا دواړه لوري یې د یوې معلومې مودې لپاره د بیعې د منلو او یا نه منلو په هکله د ځان لپاره ساتي.

البته خیار شرط هغه وخت ثابتیږي چې د عقد په وخت کې یې ذکر وشي او جانبین پرې اتفاق وکړي.

## د رواوالي حکمت یې

خیار د خلکو د ضرورت او اړتیا له مخې رواشوی دی، څو خلکو ته د فکر او مشورې وخت په لاس ورشي او د ضرر مخه ونیول شي.[1]

## د خیار شرط حکم

په شریعت کې خیار شرط ایښودل جائز دي او تر هغه د اختیار د خاوند مال د هغه له ملکیت څخه نه خارجیږي او د مقابل لوری په ملکك کې نه داخلیږي تر څو خیار شرط شتون ولري.[2]




زده کوونکي دې د خیار دګټو او د مشروعیت په حکمت بحث وکړي.

---

۱- الفقه الإسلامي وأدلته - (ج ٤ / ص ٦٠٣)- العناية شرح الهداية - (٨ / ٤٤٦)

۲- درر الحکام في شرح مجلة الأحکام - (ج ١ / ص ٢٠٨)- الفقه الحنفي و أدلته ٢ - ٣٠- العناية - (٨ /)

## د خیارشرط موده

د امام ابوحنیفه رحمه الله په نظر بایع او مشتري کولای شي د دریو ورځو او یا له دریو ورځو څخه کم خیار شرط کېږدي، خو له درو ورځو څخه زیات وخت جواز نه لري. امام ابو یوسف او امام محمد رحمهما الله وایي: که چېرته یې یوه معلومه موده شرط کړې وي، که هغه له دریو ورځو څخه زیاته هم وي جواز لري.

## د خیار شرط ساقط کېدل او له منځه تلل

په لاندې امورو سره خیار شرط ساقطېږي:

۱. کله چې د خیارشرط خاوند خپل اختیار له منځه یوسي، لکه چې ووایي: ما خپل اختیار باطل کړ، بیعه مې قبوله ده او وربانديې راضي یم.

۲. د خیار د خاوند له خوا داسې کړه تر سره کول، چې د خیار په له منځه وړلو او د بیعې په قبلولو دلالت وکړي، لکه: په کور کې اوسیدل، یا د بل میشته کول، یا د هغه خرڅول.

۳. د ضرورت له مخې د اختیار له منځه تلل، لکه د اختیار د خاوند مړینه.(۱)

۴. د خیار د مودې پای ته رسیدل.

## په خیار شرط باندې د بیعې د فسخه کولو شرطونه

۱. د عقد فسخه کول به د خیار شرط په موده کې وي، څکه که په دې موده کې د خیار خاوند عقد فسخه نه کړي، په دې صورت کې عقد لازمېږي.

۲. دوهم طرف به د عقد په فسخه کولو باندې خبر وي.(۲)




۱. له خیار شرط څخه مطلب څه دی؟

۲. خیار شرط کله ساقطېږي؟

۳. د خیار شرط موده څومره ده؟

۴. په خیار شرط باندې د بیعې د فسخه کولو شرطونه کوم دي؟




د خیار شرط په هکله یوه مقاله ولیکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

---

۱- الفقه الإسلامي وأدلته - (٦١٢/٤) بحواله البدائع: ٧ ٢٦٧/٥-٢٧٢، المبسوط: ٤٢/١٣-٤٤، فتح القدير: ١١٧- ١٢٥، الدر المختار: ٤/٥٢، ٥٧.

۲- الفقه الإسلامي وأدلته - (٤ / ٦١١) بحواله البدائع: ٥/٢٧٣، تبيين الحقائق: ٤/١٨.



اوولسم لوست

# خيار رؤيت

په تیر لوست کې مو خیارشرط وپیژاند، په دې لوست کې غواړو خیار رؤیت وپیژنو.

## خيار رؤيت:

رؤیت په لغت کې: لیدلو ته وايي.

او په اصطلاح کې: د مال د لیدلو په وخت کې مشتري ته د بیعې د منلو او نه منلو واک ورکولو ته خیار رؤیت وايي.

البته خیار رؤیت هغه وخت ثابتیږي، چې مشتري د اخیستلو په وخت کې مال نه وي لیدلی.

## د خيار رؤيت د ثبوت وخت

مشتري چې مال ویني په همدې وخت کې ورته اختیار ثابتیږي، له هغه څخه مخکې ورته اختیار نه شته، حتی که مشتري مخکې له لیدلو بیعه قبوله کړي بیا هم بیعه نه لازمیږي او خیار هم نه ساقطیږي.

## د خيار رؤيت حكم

مشتري د مال د لیدلو په وخت کې اختیار لري چې بیعه فسخه کړي او یا یې قبوله کړي.[1]

## د خيار رؤيت احكام

١. که د خیار رؤیت خاوند هغه شی خرڅ کړي چې لیدلی یې نه وي، نو خپل اختیار له لاسه ورکوي.

٢. څوک چې د خیار رؤیت خاوند وي او مړ شي، خیار یې باطل ګرځي او وارثانو ته یې نه انتقالیږي.[2]

٣. خیار رؤیت معین وخت نه لري، تر هغه پورې په خپل حال پاتې کیږي تر څو چې یې باطلوونکی او له منځه وړونکی سبب پیدا نه شي.

٤. د وکیل لیدل کټ مټ د مشتري د لیدلو په څېر وي، نوکوم شی چې ویني هغه بیرته نشي ګرځولای مګردا چې کوم عیب ولري.

---

١- تحفة الفقهاء - (ج ٢ / ص ٨٢)

٢- الكتاب - فقه حنفي - (ج ١ / ص ١٨٧)

۵.که چاکوم شی پخوا لیدلی وي او بیا یې له څه مودې څخه وروسته واخلي، نوکه هغه شی په خپل حال پاتې و، نو په دې صورت کې خیار ورته نشته، اوکه په هغه شي کې کوم منفي بدلون راغلی وي په دې صورت کې، د اخیستلو یا نه اخیستلو اختیار لري.[1]




د خیار رؤیت ګټې په انفرادي او یا ګروپي توګه بیان کړئ .




۱.خیار رؤیت څه ته ویل کېږي؟
۲.خیار رؤیت کله ثابتېږي؟
۳.د خیار رؤیت حکم څه دی؟

د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کېږدئ:

۱.د خیار رؤیت خاوند چې هر شي خیار یې باطلېږي. ( )
۲.خیار رؤیت موقت نه دی او تر هغه پورې په خپل حال پاتې کېږي چې باطلوونکی یې نه وي پیداشوی. ( )
۳.د وکیل لیدل د مشتري د لیدلو په څېر نه دي. ( )




د دې درس عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ .

---

۱- العنایة شرح الهدایة - (ج ۹ / ص ٤)





# خيارعيب

د خيار شرط اوخيار رؤيت له پېژندلو څخه وروسته غواړو په دې لوست کې خيارعيب وپيژنو.

## د خيار عيب تعريف:

د مشتري (اخيستونكي) هغه خيار ته ويل كېږي چې له امله يې عيبجن مال (مبيع) بېرته بايع (د مال څښتن) ته رد كولاى شي.[1]

## د مشروعيت حكمت يې

بايع او مشتري يو پر بل دا حق لري چې يو بل ته سالم او له عيب څخه پاك مال وركړي اوكه يو بل ته عيب جن شى وركړي، نو شريعت ورته د دې اختيار وركوي چې مال يې بيرته ور رد كړي، ترڅو د ده څخه ضرر دفع شي او داسې څه وربانديې لازم نه شي چې هغه ته پكې تاوان وي.[2]

## د عيب پټول

په حديث كې رسول اللهﷺ فرمايي: (مسلمان د مسلمان ورور دى، او مسلمان ته دا روا نه ده چې په خپل ورور باندې عيبجن شى وپلوري، مگر دا چې د هغه عيب ور په گوته كړي).

او فرمايي: (كه بايع او مشتري په بيعه كې صداقت وكړي او حقيقت بيان كړي، په دې بيعه كې به يې بركت واچول شي او كه دروغ ووايي او عيب يې پټ كړي، نو د بيعې بركت به يې له منځه ولاړ شي).[3]

## د خيار عيب حكم

د متعاقدينو هر يو اړخ چې په مبيعه يا ثمنو كې په عيب خبر شي، كولاى شي چې هغه شى بيرته رد كړي.

## د خيار عيب د ثبوت شرطونه

١. عيب بايد مخكې له عقد څخه موجود وي. كه چېرې عيب له تسليمولو او سپارلو څخه وروسته، له مشتري سره پيدا شي، په دې صورت كې د خيار عيب واك نه لري.

٢. د هغه عيب په هكله مشتري او يا بايع ته د خيار عيب واك وركول كېږي چې د عقد او قبض په وخت كې په هغه عيب خبر نه وي او كه چېرې د عقد او يا قبض په وخت كې وربانديې خبر وي، نو بيا ورته خيار نه شته. ځكه په هغه وخت كې دى دلالتا وربانديې راضي و.

٣. مشتري بايد د عقد پر وخت كې له عيبونو څخه ابرا نه وي كړي، خو كه چېرې يې له عيب سره مبيعه

---

١- البحر الرائق شرح كنز الدقائق - (ج ١٥ / ص ٣٩٨)

٢- العناية شرح الهداية.

٣- تبيين الحقائق - (ج ١٠ / ص ٣٦٥)- رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ- والحاكم والطبراني وأحمد .

قبوله کړې وه بیا مشتري ته خیار نه شته، ځکه چې په دې حالت کې ده په خپله خپل حق له منځه وړی دی.[1]

## د خیارعیب احکام

۱. که چېرې مشتري په بیعه کې له عیب څخه خبر شي، نو دی اختیار لري:

که غواړي مبیعه واخلي، نو په ټولو ثمنو (یاد شوي قیمت) به یې اخلي، د عیب په صورت کې مبیعه رد کولای هم شي، خو دا حق نه لري چې مبیعه وساتي او د عیب په مقابل کې له بایع څخه تاوان وغواړي، مگر دا چې مقابل لوری یې ورسره ومني.[2]

۲. که چېرته مبیعه د مشتري په لاس کې عیبجنه شي او بیا وروسته په هغه عیب هم خبر شي چې له بایع سره د موجودیت په وخت کې و، نو مشتري دا حق لري چې له بایع څخه د عیب د نقصان غوښتنه وکړي، او مال دې بېرته نه ورکوي، مگر دا چې بایع له عیب سره په بیرته ردولو راضي وي.

### فعالیت

شاکر له ذبیح الله څخه یو موټر واخیست او د دې موټر ماشین په هره اونۍ کې یو لیتر موبلایل کموي، نو شاکر دعوه کوي چې دا عیب دی او ذبیح الله منکر دی، نو د دې مسئلې حل څه دی؟

### ارزونه

آ- لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. خیارعیب تعریف کړئ.

۲. د مشروعیت حکمت یې څه دی؟

۳. څه شی عیب بلل کېږي؟

٤. د خیارعیب د ثبوت شرطونه کوم دي؟

ب- د صحیح جملو په وړاندې دا (√) نښه او د غلطو جملو په وړاندې دا (X) کېږدئ:

۱. کله چې مشتري په اخیستل شوي مال کې عیب پیدا کړي، اختیار لري، که خوښه یې وه د ټولو پیسو په مقابل کې یې دې قبول کړي او که خوښه یې نه وه بېرته دې یې رد کړي، خو له ساتلو سره د نقصان د غوښتلو حق نه لري. (    ).

۲. که مال د مشتري په لاس کې عیبجن شي او بیا وروسته خبر شي چې په هغه کې د بایع په وړاندې بل عیب هم موجود و، مشتري کولای شي چې مال بېرته رد کړي. ( )

### کورنۍ دنده

د خیار عیب په هکله یوه مقاله ولیکئ.

---

۱- العناية شرح الهداية - (ج ۹ / ص ۲۷)

۲- الفقه الإسلامي وأدلته - (ج ٤ / ص ٦١٥)



نولسم لوست

# منعه شوې بیعې
# (باطله بیعه)

وروسته له دې چې صحیحې او روا بیعې مو وپیژندلې، غواړو منعه شوې او ناروا بیعې هم وپیژنو، **ناروا بیعې په درې ډوله دي**: باطله بیعه، فاسده بیعه او مکروه بیعه.

## د باطلې بیعې تعریف

په لغت کې باطل: د حق ضد ته وايي.[1]

په اصطلاح کې باطله بیعه: هغه بیعه ده چې له سره صحت نه لري، هغه داسې چې د انعقاد په کوم شرط کې يې خلل وي، لکه د لیوني او یا د کوچني ماشوم بیعه او یا دا چې مبیعه مال نه وي، لکه د خنزیر د غوښې پلورل.[2]

## حکم يې:

په دې بیعه باندې ملکیت نه ثابتیږي. که مشتري (اخیستونکی) مبیعه قبض کړې وي او یا يې نه وي قبض کړې.[3]

## د باطلې بیعې د احکامو توضیح:

- هرهغه شی چې د بیعې په رکن کې خلل رامنځ ته کړي، هغه باطلوونکی دی، لکه: په اوسنی زمانه کې د انسان خرڅول.[4]
- د هغه شي خرڅول چې مال نه وي او مبیعه يې وګرځوي، دا بیعه باطله ده، ځکه چې دلته د بیعې رکن نشته چې هغه په مال باندې د مال بدلول دي.

---

۱- البحر الرائق (ج۱٦/ ص۳۰) تبیین الحقائق (۱۰/ ص۴۲۳). مختار الصحاح - (۱ / ۷۳)
۲- درر الحکام في شرح مجلة الأحکام - (ج ۱ / ص ۲۰۱) - تبیین الحقائق (۱۱/ ص۵٦).
۳- مجلة الأحکام ۷۳. رد المحتار - (ج ۱۹ / ص ۲٤۱)
٤- درر الحکام - (ج ٦ / ص ۲٤۹)- العنایة شرح الهدایة - (ج ۹ / ص ۹۰). البحر الرائق ۲۱\۱٦)

• په پیسوباندې د غیرمتقوم مال لکه د خنزیر او شرابو اخیستل باطله بیعه ده، څکه مقصد په بیعه کې د مبیعې ذات دی چې په هغې باندې نفعه اخیستل کیږي. [1]

• د بې څښتنه شي پلورل باطله بیعه ده، لکه د بحر په اوبوکې د ماهي پلورل، او یا په هواکې د مرغه پلورل. [2]




أ- لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. باطله بیعه تعریف کړئ.

۲. د باطلې بیعې حکم څه دی؟

۳. د باطلې بیعې درې حکمونه بیان کړئ؟




د باطلې بیعې په هکله یوه مقاله ولیکئ.

۱- هدایة : ۵۳\۳- مجمع الأنهر - (ج ۵ / ص ۲۴۳). رد المحتار - (ج ۱۹ / ص ۲۲۷)

۲- مجمع الأنهر في شرح ملتقى الأبحر - (ج ۵ / ص ۲٤۱)





## شلم لوست

# اسلام ته ښکاره بلنه (دعوت)

### د ښکاره بلنې پیل

کله چې د مسلمانانو شمېر دې اندازې ته ورسېده چې د مشرکانو د مقابلې توان یې پیدا کړ او له بلې خوا د مکې مشرکانو د اسلام د مقدس دین او مسلمانانو په هکله ډول ډول خبرې اوربدلې او ځینې مسلمانان د خپل دین په خاطر ځوربدل؛ نو له دې امله د بعثت په څلورم کال اسلام ته بلنه په ښرګنده او ښکاره بڼه پیل شوه او لاندې آیت نازل شو.

((فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ)) الحجر: 94

ژباړه: هغه څه به ډاګ کړه چې تاته پدې امر کېږي او له مشرکانو مخ واړوه.

## د خپلوانو بلنه

کله چې پورتنی آیت نازل شو، نو پېغمبر ﷺ خپل قوم (بني هاشم) راوبلل او وروسته له حمد او ثنا څخه یې هغوی ته وفرمایل:

((دیو قوم لارښوونکی هېڅکله هم خپل قوم ته دروغ نه وایي، قسم په الله ﷻ چې زه تاسو او نورو خلکو ته رالیږل شوی یم، قسم په الله ﷻ چې تاسې به داسې مړه شئ، لکه څنګه چې مو خوب وړي او داسې به راژوندي شئ، لکه څنګه چې له خوب څخه راپورته کېږئ. بیا به د خپلو کړنو پوښتنه در څخه کېږي، یا به تل پاتې جنت ته ځئ او یا به دوزخ ته)).

په دې مهال ابوطالب وویل: موږ په ډېره مېړانه ستا ملاتړ کوو، ستا لارښوونې او نصیحتونه منو، ستا د خبرو تصدیق کوو، دلته د قوم ټول مشران راټول شوي دي چې زه هم یو له هغو څخه یم او تر ټولو زیاتې مې ستا خبرې خوښېږي، نو په کومه لاره چې مامور شوی یې پر هغې ولاړ شه، قسم پر خدای ﷻ ترڅو چې زه ژوندی یم له تا څخه به ساتنه او دفاع کوم، خو هېڅکله هم له خپل پلرني

دين څخه زړه نه شم صبرولی.

ابولهب وويل: قسم په خدایﷻ چې دا د شرم کار دی، مخکې له دې چې نور يې مخه ونيسي، تاسو د هغه مخنيوی وکړئ.

ابو طالب وويل: قسم په خدایﷻ ترڅو چې ژوندی يم له هغه څخه به دفاع کوم.

## د صفا غونډۍ پر سر

کله چې رسول اللهﷺ د ابو طالب له ملاتړ څخه ډاډه شو، نو بله ورځ د صفا غونډۍ پرسر وختو او په لوړ آواز يې نارې کړې: ای خلکو! پاڅېږئ راوبښ شئ او ځان له دښمن څخه وژغورئ! لکه څرنګه چې قريش د داسې غږ په اورېدو سره راټولېدل، دلته هم ټول يو ځای راغونډ شول.

رسول اللهﷺ دوی ته وفرمايل: که چېرې زه تاسو ته ووايم چې د مکې د غرونو تر شا يو لوی لښکر راغونډ شوی دی او غواړي چې پر تاسو يرغل وکړي، نو تاسې به زما خبره ومنئ؟

هغوی وويل: هو! موږ تر اوسه له تا څخه پرته له رښتيا بل څه ندي اورېدلي، رسول اللهﷺ وفرمايل: همدارنګه زه تاسې له يو يقيني راتلونکي عذابه ويروم. خپل ځان د دوزخ له اوره وژغورئ.

بيا يې وفرمايل: ای بني کعبو! ای بني مره و! ای بني عبدالمطلبو! تر دې چې د خپلې لور فاطمې نوم يې هم واخيست او هغوی ته يې وويل: په ايمان راوړلو سره ځان د دوزخ له اوره وژغورئ، زه ستاسو لپاره هېڅ کولای نه شم، مګر دا چې په دنيا کې له تاسو سره خپلوي ولرم او ښېګڼه درسره وکړم، خو په اخرت کې زه ستاسو هېڅ مرسته نه شم کولی.

## د ابو لهب غبرګون

پر دغه مهال ابو لهب رسول اللهﷺ ته وويل: برباد او تباه شې، **آيا** تا موږ د دې لپاره راټول کړي يو؟ نو بيا دا **آيت** ((تَبَّتْ يَدَا اَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ(١) مَا اَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ(٢))) چې د ابو لهب پر دايمي هلاکت او تباهی څرګند دليل و، نازل شو.




له خپلوانو څخه د بلنې د پيل حکمت څه و؟ څرګند يې کړئ.

## اسلامي دعوت سره د قريشو دښمني

قريشو له دې وېرې چې پلرنی دود، دستور او معتقدات يې له منځه ولاړ نشي او د بت پرستۍ د دين مشري او ګټې يې له لاسه ونه وځي، په مخالفت او ډېر سخت غبرګون لاس پورې کړ.

## د دې لوست ګټې:

۱ـ د اسلامي دعوت اصلاحي کړنلارې بايد د وخت د شرايطو او حالاتو سره سمون ولري.

۲ـ د هرې اصلاحي کړنلارې د پلي کولو لپاره د مرستندويو او پلويانو شتون اړين دی.

۳ـ د اصلاحي کړنلارو د پلي کولو په وړاندې د ځينو مغرضينو مخالفت بايد د مايوسۍ او پښېمانۍ لامل نه شي.




الف: لاندېنيو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱ـ رسول الله ﷺ د انذار آيت له نازلېدو وروسته تر هرڅه د مخه څه وکړل؟

۲ـ د صفا غونډۍ پرسر قريشو ته د رسول الله ﷺ د وېناوو مفهوم په لنډ ډول بيان کړئ.

۳ـ په اسلامي دعوت سره د قريشو د مشرانو د دښمنۍ لامل څه و؟ څرګند يې کړئ.

ب: د صحيح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کېږدئ.

۱ـ د ((وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ)) آيت له نازلېدو څخه وروسته پېغمبر ﷺ خپلوان راټول کړل او هغوی يې په ټولنيزه توګه اسلام ته راوبلل. ( )

۲ـ پېغمبر ﷺ د صفا غونډۍ پرسر د قريشو مختلف قبايل اسلام ته راوبلل. ( )

۳ـ د هجرت په څلورم کال اسلام ته بلنه په ښکاره ډول پيل شوه. ( )




د لوست مطالب په لنډ ډول وليکئ او مناسب عنوان ورته وټاکئ.



يوويشتم لوست

# د حق دعوت له اوریدو څخه د مکې مکرمې د زایرینو منع کول

د دعوت له ښکاره کېدو څخه څه زیاته موده نه وه تېره شوې چې قریش د یوې بلې غمیزې سره مخامخ کېدونکي وو او هغه مکې مکرمې ته د زایرینو د راتګ مراسم وو، هغوی پوهېدل چې دغه زایرین د جزیرة العرب له مختلفو سیمو څخه مکې مکرمې ته راځي او رسول الله ﷺ به ارومرو له هغوی سره کتنه کوي. د هغوی غوږونو ته به د اسلامي دعوت خبرې رسېږي، نو مخکې له دې چې هغوی د محمد ﷺ له خبرو متاثره شي، لازمه ده چې داسې احتیاطي تدابیر ونیول شي، ترڅو د دې کار مخنیوی پرې وشي.

## د ولید بن مغیره سره مشوره

د دې خبرې لپاره ټول ولید بن مغیره ته د مشورې لپاره ورغلل. ولید وویل: د محمد ﷺ په هکله باید په یوه خبره راغونډ شو او بېلې بېلې خبرې ونه کړو، ټولو وویل:

ته ښه وایې.

ولید وویل: تاسې خپل نظر وړاندې کړئ، زه به یې واورم.

هغوی وویل: موږ وایو چې محمد ﷺ کوډګر دی.

ولید وویل: قسم په الله ﷻ چې هغه کوډګر نه دی، موږ کوډګران لیدلي دي، دی هغو ته ورته والی نه لري.

قریشو وویل: موږ به ووایو چې لېونی دی.

ولید وویل: هغه لېونی نه دی، موږ لېونیان لیدلي دي، لېونتوب پېژنو، نه یې خوده دی او نه یې واکه او نه یې ځایه خبرې کوي.

هغوی وویل: و به وایو چې شاعر دی.

ولید وویل: شاعر هم نه دی، موږ شعر او د شعر ټول ډولونه پېژنو، د ده خبرې هېڅکله هم شعر ته

ورته نه دي.
هغوی وویل: موږ به دا وواېو چې ساحر دی.
ولید وویل: نه، هغه ساحر هم نه دی، موږ ساحران لیدلي دي، د هغه کړنې او حرکات د ساحرانو په څېر نه دي.

## د قریشو اتفاق پر دې چې محمدﷺ ته ساحر ووايي

قریشو وویل: نو څه ووایو؟
ولید وویل: قسم په اللهﷻ چې د ده خبرې ډېرې خوږې، ربښتیني، ژورې او څانګې یې مېوه لرونکې دي، تاسې چې د ده په هکله څه وایئ له ډاګه بریښي چې خبره مو غلطه ده.
یوازې یوه خبره د ده په هکله ویلی شو او هغه دا چې ووایو: هغه ساحر دی.
داسې یو سحر یې له ځان سره راوړی دی چې پلار له زویه، ورور له وروره، مېړه له ښځې او سړی له خپلوانو څخه جلا کوي او یو د بل دښمن یې ګرځوي، د ټولو دا خبره خوښه شوه او سره خپاره شول.

## ولید بن مغیره د وحې په هنداره کې

د ولید بن مغیره په هکله د مدثر سورت څو آیتونه نازل شول چې د ده کړنې په کې ذکر شوې دي. الله تعالٰی فرمايي: ((إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ١٨ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ١٩ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ٢٠ ثُمَّ نَظَرَ ٢١ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ٢٢ ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ ٢٣ فَقَالَ إِنْ هَذَا إِلاَّ سِحْرٌ يُؤْثَرُ ٢٤))
ژباړه: هغه فکر وکړ اندازه یې ولګوله (چې څه طعنه ورکړي) په دې اندازه لګولو دې دی تباه شي، بیادې په دې اندازه لګولو تباه شي. بیا ښه ځیر شو، بیا یې تندی تریو او خوله یې کږه کړه، بیا یې شا کړه او لویي یې وکړه او ویې ویل: دا قرآن هغه اغېزمن جادو او سحر دی چې له خورا پخوا زمانو څخه پاتې دی.[1]

## د قریشو د دسیسې پلې کول

د دې لپاره چې قریش خپله دسیسه او توطئه په سمه توګه پلې کړي، نو زیات شمېر خلک یې وټاکل، ترڅو د کعبې شریفې زایرین پر محمدﷺ باندې بدګومانه کړي چې د دې کار د پرمخ بیولو زیات مسؤولیت د ابولهب پر غاړه و.

## د ابولهب دریځ

کله به چې رسول اللهﷺ د دعوت لپاره د زایرینو خیمو، تم ځایونو او د سیمې بازارونو ته ورتلو، ابولهب به د ده ترشا خلکو ته ویل: د محمدﷺ خبرې ونه منئ، هغه خپل پلرنی دین پرېښی دی او دروغ وايي.

---

۱- دا فقره په آزموینه کې شامله نه ده، یواځې د زده کوونکو د علمي زېرمې لپاره ده.

## په جزیرة العرب کې د بعثت د خبر خپرېدل

د قریشو ظالمانه هڅو هغوی ته هېڅ ګټه ونه رسوله، رسول اللهﷺ د دعوت کار تر هغه ځایه ورساوه چې قریشو یې تصور هم نه کاوه، هغه دا چې ټول زایرین د رسول اللهﷺ له دعوت او بلنې څخه خبر شول او د هغوی په ستنېدو سره د بعثت خبر په جزیرة العرب کې خپور شو.

## د لوست ګټې

۱. د حق دعوت منکران پدې هڅه کې وو، ترڅو نورو ته د حق اواز د رسېدو مخنیوی وکړي.

۲. د خپل توان په اندازه د حق دعوت د رسولو لپاره هڅه او هاند او په دې لاره کې د هر ډول ممکن فرصت څخه استفاده کول.

۳. د منکرینو له دسایسو سره سره، د حق دعوت بیا هم پر مخ ځي او خپله لاره پرانیزي.




الف: لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱ـ د مکې مکرمې زایرینو ته د حق دعوت د رسېدو د مخنیوي لپاره قریشو څه تدابیر ونیول؟

۲ـ د دې لوست ګټې څرګندې کړئ.

۳ـ ولید بن مغیره قریشو ته څه مشوره ورکړه؟

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱ـ قریش د مشورې لپاره (        ) ته ورغلل.

۲ـ د قریشو غوښته شوې خبره دا وه چې ووایي (        ) دی.

ج: د صحیح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کېږدئ.

۱ـ قریش د مشورې لپاره ابوجهل ته ورغلل. (    )

۲ـ د رسول اللهﷺ د بعثت خبر د مکې مکرمې د زایرینو په مرسته په جزیرة العرب کې خپور شو. (    )




د دې لوست د مطالبو په هکله په خپل تعبیر او خپلې ژبه یوه لنډه مقاله ولیکئ.



دوه ویشتم لوست

# د مخالفینو لخوا د دعوت د خپرېدو مخنیوی

## د دعوت د مخنیوي لپاره د قریشو نورې دسیسې

کله چې قریش په دې خبره پوه شول چې محمدﷺ له خپل دعوت څخه نشو گرځولی، نو یوځل بیا اندېښمن شول او د اسلامي دعوت د مخنیوي لپاره یې لاندینۍ دسیسې وکارولې.

۱ـ ملنډې، ټوکې کول، سپکاوی او دروغجن گڼل: مشرکینو په دې توگه د مسلمانانو د سپکاوي او د دوی د معنویاتو د ضعیفولو هڅه کوله او پیغمبرﷺ ته به یې سپکې سپورې ویلې کله به یې لېونی او کله به یې دروغجن او جادوگر باله.

۲ـ د رسول اللهﷺ د لارښوونو په هکله بدگماني او شکونه پیدا کول او د خلکو په وړاندې یې بې اغېزه ښکاره کول.

۳ـ قرآن کریم به یې زړو کیسو ته ورته او مشابه گاڼه.

## د مشرکینو یوه بله هڅه

مشرکانو د دعوت د مخنیوي لپاره ډېرې هلې ځلې وکړې چې له دغو هلو ځلو څخه یوه هم رسول اللهﷺ ته د قریشو د استازي عتبه بن ربیعه وړاندیز و، عتبه رسول اللهﷺ ته د ډېر مال، د قریشو د مشرۍ او د هر ډول دنیوي غوښتنو د بشپړولو وړاندیز وکړ، خو رسول اللهﷺ د هغه په ځواب کې وویل: زه د دې لپاره نه یم رالېږل شوی چې ستاسو مالونه واخلم او یا پرتاسو مشري وکړم، بلکې زه الله تعالیٰ ستاسو لپاره رسول رالېږلی یم، پر ما د الله ﷻ کتاب نازل شوی دی او ماته امر شوی دی چې تاسو ته د جنت زیری درکوونکی او له دوزخ نه وېروونکی اوسم.

## د دې لوست گټې

۱. کله چې یو بلونکی (داعي) سپېڅلی وي، هېڅ ډول تورونه او افتراگانې نشي کولی د هغه د دعوت مخه ونیسي.

۲.که چېرې مسلمانان د دعوت په لاره کې له ستونزو سره مخ شي، نو لازمه ده چې ثبات او استقامت ولري او په صبر او حکمت سره د ټولنې د اصلاح لپاره هڅه وکړي.

۳.د ټولنې اصلاح د اسلام د مبین دین د لارښوونو په پلي کولو سره د دنیا د هر مال او متاع څخه لوړ او غوره کار دی او دا نه ښايي چې د دنيوي امتيازاتو لپاره له هغې تنازل وشي.



## ارزونه

۱ـ قریشو د رسول اللهﷺ په وړاندې له نورو کومو دسایسو کار واخیست؟

۲ـ عتبه بن ربیعه رسول اللهﷺ ته د څه وړاندیز وکړ؟

۳ـ رسول اللهﷺ د عتبه بن ربیعه وړاندیز ته څرنګه ځواب ورکړ؟

٤ـ د دې لوست ګټې په لنډه توګه بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

د دې لوست مطالب په لنډه توګه ولیکئ.



## درویشتم لوست

# ابوطالب ته د قریشو د پلاوي لیږل

قریشو په ډېر جدیت سره د دعوت د مخنیوي لپاره هڅه کوله، خو په دې نه پوهېدل چې د داسې ستر شخصیت په وړاندې کوم چې ابوطالب ته ډېر ګران او عزتمن و، څه تدابیر ونیسي. وروسته له ډېر فکر او مشورې دې پایلې ته ورسېدل چې ابوطالب ته ورشي او د هغه په مرسته د حضرت محمدﷺ د دعوت مخه ونیسي.

## ابوطالب ته د قریشو پلاوی

څرنګه چې ابوطالب د قوم سپین ږیری و، له دې امله یې په قوم کې ډېر عزت او لوړ مقام درلود او خبرې یې منل کېدلې، له بلې خوا هغه د رسول اللهﷺ ملاتړ، حمایت او پلوي کوله، نو د دې لپاره چې قریش په داخلي اختلافاتو کې ښکېل نشي ابو طالب ته ورغلل، ترڅو د دعوت د مخنیوي لپاره د هغه قناعت او رضا حاصله کړي او د قریشو او محمدﷺ ترمنځ داسې یو تړون لاسلیک کړي چې د هغه پر بنسټ محمدﷺ د خلکو له دعوت څخه لاس واخلي او په مقابل کې یې چې هر امتیاز غواړي هغه ته به ورکړل شي.

ابو طالب خپل وراره محمدﷺ راوغوښت او هغه ته یې وویل: ګرانه وراره!

دوی ستا د قوم مشران دي او د دې لپاره راغلي، ترڅو تاسو ته ژمنه درکړي او له تاسو ژمنه واخلي.

## ابوطالب ته د رسول اللهﷺ وړاندیز

کله چې رسول اللهﷺ له خپل تره څخه د مشرکینو غوښتنې واورېدلې، نو هغه ته یې وویل: زه دوی یواځې یوې کلمې ته رابولم، که دوی ومنله، نو خدای تعالی به دوی ته په دواړو جهانونو کې عزت او سرلوړي ور په برخه کړي.

ابو جهل په دې خبره خوشحاله شو چې د یوې کلمې په ویلو به د ټولو امتیازاتو خاوند شي.

ابوطالب وویل: هغه کلمه څه ده؟ پېغمبرﷺ وفرمایل: تاسو د (لا اله الا الله) کلمه ووایئ. د دې خبرې

په اوږدو سره د قریشو مشران مایوسه او نااميده شول او ويې ويل:
په الله جَلَّ جَلالُه سوګند چې دی به هېڅکله هم ستاسو غوښتنې ونه مني.
په بل روایت کې راغلي دي، کله چې رسول اللهﷺ د ابوطالب خبرې واورېدلې، نو په دې فکر شو چې شاید تره يې د ده له ملاتړ څخه لاس اخيستلی دی، نو خپل تره ته يې داسې وويل: ګرانه کاکا! قسم په خدای جَلَّ جَلالُه دی که چېرې دوی لمر په ښي لاس او سپوږمۍ په کيڼ لاس کې راته کېږدي (يعنې د ځمکې او د هغې د چاپېريال واک او اختيار راکړي) او له ما نه وغواړي چې د توحيد دعوت پرېږدم، نو زه به هېڅکله دا دعوت پرې نږدم او تر هغه به دوام ورکړم چې يا زه بريمن او يا په دې لار کې شهيد شم.
ابو طالب د دې خبرې په اورېدو سره هغه ته د مرستې او ملاتړ ډاډ ورکړ او ورته يې وويل: قسم په خدای جَلَّ جَلالُه هېڅکله به دې هيچا ته ونه سپارم.

## د لوست ګټې

١. د اسلام د مقدس دين متابعت او هغه ته بلنه، د دنيا له ټولو امتيازاتو څخه غوره ده، مسلمان لره دا نه ښايي چې د دنيوي امتيازاتو لپاره ورڅخه تنازل وکړي.
٢. ابوطالب د قريشو له خواټول تکاليف وزغمل، خو د رسول اللهﷺ له ملاتړ څخه لاس په سر نه شو.




الف: ابوطالب ته د قريشو د پلاوي د لېږلو کيسه په لنډ ډول بيان کړئ.
ب: لاندې خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.
١_ قريش دې پايلې ته ورسېدل چې (                ) ته ورشي.
٢_ که چېرې دوی (                ) په ښي لاس او (                ) په کيڼ لاس راته کېږدي.
ج: د صحيح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کيږدئ.
١_ د قريشو يوه ډله ابوجهل ته ورغله. (    )
٢_ ابو طالب محمدﷺ ته وويل: قسم په خدای جَلَّ جَلالُه هېڅکله به دې هيچا ته ونه سپارم. (    )




د دې درس مطالب د يوې لنډې مقالې په ترڅ کې په خپلې ژبې او تعبير سره وليکئ او يو مناسب عنوان ورکړئ.






ځلرویشتم لوست

# د حبشې په لور هجرت

وروسته له دې چې حضرت محمدﷺ د بعثت په څلورم کال په ښکاره ډول بلنه پیل کړه، د قریشو ظلم او تېری هم پر مسلمانانو پیل شو.
د قریشو دغه ظلم او تېری د پنځم کال تر نیمايي خپلې لوړې پوړۍ ته ورسېد او مکه مکرمه پر مسلمانانو تنګه شوه او له دې ستونزو څخه دخلاصون په لټه کې شول.
حضرت محمدﷺ ته دا معلومه وه چې د حبشې پاچا (نجاشي) یو ډېر عادل سړی دی، نو مسلمانانو ته یې د دین د ژغورلو په هیله د حبشې په لور د هجرت امر وکړ.

## د حبشې په لور د مسلمانانو لومړنی هجرت

د نبوت په پنځم کال د رجب په میاشت کې د مسلمانانو لومړنۍ ډله چې له دولسو سړیو او څلورو ښځو څخه جوړه شوې وه د حضرت عثمان بن عفانرضي الله عنه په مشرۍ د رسول اللهﷺ د لور بي بي رقیه رضی الله عنها په ګډون حبشې ته روانه شوه.

د دې لپاره چې قریش یې مخه ونه نیسي دا کاروان د شپې له لوري د شعیبه د بندرګاه په لور روان شو، هلته دوې سوداګریزې کښتۍ ولاړې وې چې دوی یې سپاره کړل او د حبشې په لور روانې شوې.
قریش ډېر ژر د مسلمانانو له دې کار څخه خبر شول او د دوی د راګرځولو لپاره یې بندرګاه ته خپل کسان ولېږل، خو د مسلمانانو ډله د دوی له رسېدو د مخه له هغه ځایه وتلې وه چې په دې توګه د مسلمانانو دغه ډله د مشرکانو له ظلم او تېري څخه په امان شوه.



فعالیت

په دغې ډلې کې د حضرت محمدﷺ د نیږدې خپلوانو څخه څوک و؟ نومونه یې واخلئ.

## د قریشو د مشرانو د مسلمانېدلو خبر

د حبشې مهاجرینو ته دا خبر ورسېد چې د مسلمانانو او قریشو تر منځ تاوتریخوالی کم شوی دی او هغه داسې چې د قریشو مشرانو په حرم کې د نجم سورت د څو آیتونو له اورېدو وروسته له مسلمانانو سره یو ځای سجده وکړه او داسې حالات رامنځ ته شوې چې د قریشو مشرکان به مسلمانان نه ازاروي، نو له دې امله هغوی د بېرته راتګ نیت وکړ او د مکې په لور راروان شول، کله چې مکې مکرمې ته د یوې ورځې مزل په واټن نژدې شول، نو پوه شول چې خبره هسې نه ده او د قریشو ظلمونه د پخوا په څېر دوام لري، نو زیات شمېر مهاجرین بېرته حبشې ته ولاړل او یواځې څو تنه یې په پټه مکې مکرمې ته ننوتل.

## د حبشې په لور د مسلمانانو دویم هجرت

د حبشې د مهاجرینو د بېرته راتګ وروسته د قریشو ظلم او تېری نور هم زیات شو، نو له دې امله رسول الله ﷺ نورو مسلمانانو ته هم اجازه ورکړه، ترڅو په پټه د دویم ځل لپاره حبشې ته هجرت وکړي.

د مسلمانانو شمېر دا ځلې (۱۰۲) تنه و چې (۸۳) تنه یې سړي او (۱۹) تنه یې ښځې وې، د دې ډلې مشري جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه کوله.

## د لوست ګټې

۱. هجرت کول د پېغمبر ﷺ له سنتو څخه دی چې د مسلمانانو لپاره مشروع ګرځېدلی دی، ترڅو د ظالمانو له ظلم او تېري څخه په امن شي او وکولای شي خپل دیني شعایر پرته له کوم ډار او خوف څخه ترسره کړي.

۲. د الله جل جلاله په لار کې هجرت کول او له ایمان او عقیدې څخه حفاظت د بشري تاریخ په اوږدو کې د لویو تحولاتو لامل شوی دی.

۳. مسلمان لره ښایي چې په بې بنیاده خبرو، اوازو او شایعاتو ونه غولېږي او خپل معلومات او پوهه له موثقو منابعو څخه ترلاسه کړي.

٤. مسلمان باید تل د صبر او زغم په ګانه سمبال وي او په ځانګړي ډول کله چې حالات خراب او کړکېچن وي.




۱. حبشې ته د مسلمانانو د لومړني او دویم هجرت لنډه یادونه وکړئ.

۲. د حبشې په دواړو هجرتونو کې د مهاجرینو شمېر وښایاست.

۳. د دې لوست ګټې څرګندې کړئ.




د دې لوست مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ.







## پنځه ویشتم لوست

# د حبشې د مهاجرينو پرخلاف د قريشو دسيسه

### حبشي ته د استازو لېږل

دا چې مهاجرين هوسا ټاټوبى ولري، ترڅو د هغوى ځان، مال او دين په امن وي، دا كار د قريشو د مشركانو لپاره د زغم وړ نه و، نو له دې امله يې عمرو بن العاص او عبدالله بن ربيعه چې هوښيار او كار پوهه كسان وو، د خورا غوره او قيمتي ډاليو سره نجاشي ته ولېږل، دواړو استازو قيمتي ډالى دربار ته نږدې سردارانو ته وركړې او هغه دلايل يې هم ورته وويل چې د هغو له مخې مسلمانان بايد له حبشې څخه وشړل شي، د دربار سرداران په يوه خوله شول چې نجاشي به د مهاجرينو په ويستلو رضا كړي، دوى ټول د نجاشي دربار ته ولاړل او خپلې ډالى يې وړاندې كړې او نجاشي ته يې وويل:

زموږ څو تنه ناپوهه ځوانان ستاسې پاچايى ته په پټه راغلي دي، دوى خپل دين پرېښى دى او ستاسو دين يې هم نه دى منلى، نوى دين يې جوړ كړى دى چې نه يې موږ پېژنو او نه يې هم تاسې، موږ د قوم مشرانو تاسو ته رالېږلي يو، ترڅو تاسې زموږ فراريان موږ ته وسپارئ.

### د درباريانو سپارښتنه

د دربار سردارانو وويل: د پاچا سر دې سلامت وي، دا استازي رېښتيا وايي، سرې يې وروسپارئ چې له ځان سره يې بوځي، خو نجاشي وويل:

دا موضوع بايد ښه وڅېړل شي او د دواړو اړخونو دلايل واورېدل شي. مسلمانان يې خپل دربار ته راوغوښتل او له هغوى څخه يې پوښتنه وكړه: دا كوم دين دى چې له خپل قوم څخه پرې جلا شوي ياست؟ نه مو زموږ دين منلى او نه د نړۍ كوم بل دين؟

## د مسلمانانو وياند

د مسلمانانو وياند جعفر بن ابي طالب وويل:

قدرمنه پاچا! موږ ناپوهه وو د بتانو عبادت مو کاوه او مرداري مو خوړه، زنا موږ کې ډېره وه، خپلوۍ مونه پاللې، ګاونډي مو ربړول او زموږ زورور په کمزوري تېری کاوه، موږ دغه ناوړه عادات درلودل چې پاك الله تعالی زموږ له منځ څخه خپل استازی غوره کړ، نسب يې موږ ته معلوم دی، په رېښتينولۍ، امانتدارۍ او نورو ښو اخلاقو سره زموږ په منځ کې مشهور دی، موږ ته يې د يو الله ﷻ د عبادت بلنه راکړه او د هغو بتانو او کاڼو له عبادت څخه يې منع کړو د کومو چې زموږ پلرونو عبادت کاوه، موږ ته يې لارښوونه وکړه چې تل بايد رېښتيا ووايو، امانت پوره ورکړو، خپلوي وپالو، له ګاونډيانو سره ښه ژوند وکړو، له ناروا او وينو تويولو څخه لاس واخلو، موږ يې له زنا کولو، دروغو ويلو، د يتيم د مال له خوړلو او په پاك لمنو ښځو د تور لګولو څخه منع کړو.

موږ ته يې امر وکړ چې د يو الله ﷻ عبادت وکړو، هېڅ شی ورسره شريك او سيال ونه ګڼو، حلال يې حلال او حرام يې حرام وګڼو، نو زموږ قوم له موږ سره په همدې خبرو دښمن شو او موږ يې سخت وربړلو، ترڅو موږ اسلام پرېږدو او بېرته د بتانو عبادت پيل کړو او هغه ناروا کارونه وکړو چې وړاندې مو کول، کله چې دوی پر موږ ظلم او تېری پيل کړ او څمکه يې راباندې تنګه کړه، نو ستا پاچايۍ ته مو هجرت وکړ او له ټولو خلکو څخه مو تاسې غوره وګڼلې او ستاسو په ګاونډ کې موږ ته ژوند ښه ښکاره شو، اوس هيله لرو ترڅو ستاسو په خوا کې پر موږ ظلم ونشي.




د زده کوونکو څخه دې يو تن د جعفر رضی الله عنه د وينا مهم ټکي په خپلو الفاظو ووايي.

## د نجاشي غبرګون

نجاشي وويل: آيا هغه څه چې ستاسو پېغمبر راوړي له ځانه سره لرئ؟

جعفر رضی الله عنه ځواب ورکړ: هو! بيا يې د قرآن عظيم الشان د مريم سورت څو آيتونه تلاوت کړل، نجاشي د قرآن کريم د آيتونو په اورېدو سره ډېر وژړل، تر دې چې ږېره يې لنده شوه او د دربار مذهبي مشرانو يې هم وژړل چې د ژړا له امله يې په لاسونو کې نيولي کتابونه هم لانده شول، بيا نجاشي دوی ته وويل: دا او هغه څه چې عيسی عليه السلام راوړي وو دواړه د يو څراغ رڼا ده.

عمرو بن عاص او د هغه ملګري ته يې وويل: ولاړ شئ، قسم په الله ﷻ چې هېڅکله به هم دا خلك تاسو ته ونه سپارم.

## د نجاشي د ذهنيت د خرابولو کوښښ

د هغه حسد او کينې له مخې چې د قريشو استازو په زړه کې درلوده پاچا ته يې وويل:

دوى د عيسٰى عليه السلام په هکله بې ځايه خبرې کوي. هغه مسلمانان راوغوښتل او له هغو څخه يې پوښتنه وکړه، جعفر رضي الله عنه ورته وويل: موږ د حضرت عيسٰى عليه السلام په هکله هغه څه وايو چې زموږ پيغمبر موږ ته راوړي دي. هغه د خداى جل جلاله بنده، د خداى جل جلاله پيغمبر او د خداى جل جلاله روح او کلمه ده چې پاکې او پېغلې بي بي مريم ته يې القاکړه. نجاشي د ځمکې څخه يو ډکى راپورته کړ او ويې ويل: قسم په الله جل جلاله چې د عيسٰى عليه السلام حقيقت د دې ډکي په اندازه هم ستاسو له خبرو څخه زيات نه دى.

نجاشي مسلمانانو ته وويل: ولاړ شئ! زما د پاچاهۍ په حدودو کې په بشپړ ډاډ سره ژوند کولى شئ، چا چې تاسو ته ناوړه خبرې وکړي، نو زه به ارو مرو هغه ته سزا ورکړم.

## د لوست ګټې

١. څوک چې د چانمايندګي کوي، لازمه ده چې هغه پوه، زيرکه، باخبره او د منطق خاوند وي.

٢. د حضرت عيسٰى عليه السلام په هکله د واقعي مسيحيت او اسلام ترمنځ کوم توپير نه ليدل کېږي.

٣. پر قاضيانو او حاکمانو لازمه ده مخکې له دې چې نهايي فيصله صادره کړي د دعوې د جانبينو دلايل او نظريات واوري.

٤. که د اسلام دښمنان ډېر زيات چالاکه او زيرکه هم وي، بيا هم د پوه او هوښيار مسلمان د منطق او استدلال په وړاندې ماتې خوري.




د دې لوست څخه چې نورې ګټې اخيستل کېږي هغه بيان کړئ.

## ارزونه

الف: لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱ـ د دې لوست مهم ټکي په لنډ ډول بیان کړئ.

۲ـ عمرو بن عاص او عبدالله بن ربیعه د مهاجرو مسلمانانو د دین په هکله نجاشي ته څه وویل؟

۳ـ جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه نجاشي ته د اسلام د ښېګڼو په هکله څه وویل؟

٤ـ عمرو بن عاص او عبدالله بن ربیعه د عیسٰی علیه السلام په اړوند د مسلمانانو د نظر په هکله څه وویل؟

۵ـ جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه د عیسٰی علیه السلام په هکله څه وویل؟

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱ـ دا او هغه څه چې عیسٰی علیه السلام راوړي دي دواړه د یو (      ) رڼا ده.

۲ـ موږ د عیسٰی علیه السلام په هکله هغه څه وایو چې زموږ (            ) موږ ته راوړي دي.

۳ـ نجاشي له ځمکې څخه یو نرۍ (      ) راپور ته کړ.

## کورنۍ دنده

د دې لوست مطالب د یوې لنډې مقالې په ترڅ کې په خپل تعبیر او ژبه ولیکئ.



## شپږ ويشتم لوست

# د حمزه رضي الله عنه اسلام راوړل

حمزه رضي الله عنه د بعثت په شپږم کال د ذوالحجې په مياشت کې اسلام راوړ، يوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د صفا غونډۍ سره ناست و، د جهل پلار ابو جهل رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېر وربړاوه، تر دې چې هغه يې په کاڼي وويشت او داسې يې زخمي کړ چې وينې ترې رواني شوې، وروسته بيا ابو جهل د کعبې خوا ته ولاړ او د قريشو په غونډه کې شريک شو. د عبدالله بن جدعان وينځې چې دغه زړه دردوونکی حالت په خپلو سترګو ليدلی و، حضرت حمزه رضي الله عنه ته چې تازه له ښکار څخه راغلی و او ليندۍ يې هم په لاس کې وه، بيان کړ.

## له ابو جهل څخه بدله

حضرت حمزه رضي الله عنه چې د قريشو تر ټولو زړور پياوړی او تکړه ځوان و د خپل وراره له مظلوميت څخه يې غيرت په جوش راغی، پرته له کوم ځنډه په ابوجهل پسې د کعبې ساحې ته ورغی، د ابوجهل په سر ودرېد او ورته يې په ډېر قهر او غوسه وويل:

ای بې غيرته! ته زما وراره ته بدرد وايې او له دې څخه خبر نه يې چې زه د هغه په دين يم؟ بيا يې په ليندۍ ووېشت او ډېر سخت يې زخمي کړ او په دې ترتيب سره حضرت حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه د اسلام په مبارک دين مشرف شو او په پوره ميړانه يې له اسلام او پيغمبر صلی الله علیه وسلم څخه دفاع وکړه.

### د لوست ګټې

۱- رسول الله صلی الله علیه وسلم د اسلام د دين په تبليغ کې له ابو جهل څخه ډېر تکاليف او ستونزې وليدلې، خو بيا يې هم د هغو په وړاندې له صبر او زغم څخه کار واخيست.

۲-د اسلام دښمنان تل د اسلامي دعوت د مخنيوي لپاره له هر ډول وسايلو څخه کار اخلي، د

اسلامي دعوت گرانو شکنجه کول او تعذیبول د اسلامي دعوت د مخنیوي په لار کې د دوی له تل پاتې وسایلو څخه دي.

۳- له مظلومانو او اسلامي مقدساتو څخه په مېړانه دفاع کول د مسلمانانو په ځانګړې توګه د ځوانانو مسلمانانو یوه ځانګړتیا ده.



## فعالیت

له دې لوست څخه چې نورې ګټې اخیستل کېدای شي څرګندې یې کړئ.



## ارزونه

الف: لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱_ د حضرت حمزه رضي الله عنه د اسلام منلو لامل څه و؟

۲_ ولې حضرت حمزه رضي الله عنه پر ابوجهل په قهر شو؟

۳_ حضرت حمزه رضي الله عنه ابو جهل ته د وهلو پر مهال څه وویل؟

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱_ حضرت حمزه رضي الله عنه د بعثت په (       ) کال د ذوالحجې په میاشت کې مسلمان شو.

۲_ حضرت حمزه رضي الله عنه د قریشو تر ټولو (       ) ځوان و.

ج: د صحیح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کېږدئ.

۱_ حضرت حمزه رضي الله عنه د بعثت په اتم کال مسلمان شو. (   )

۲_ د حضرت حمزه رضي الله عنه د مسلمانېدو لامل د ابوجهل ظلم پر حضرت محمد ﷺ باندې و. (   )

۳_حضرت حمزه رضي الله عنه د خپل اسلام اعلان په مسجدالحرام کې وکړ. (   )



## کورنۍ دنده

د دې لوست مطالب د یوې لنډې مقالې په ترڅ کې په خپل تعبیر او ژبه ولیکئ.



اووه ویشتم لوست

# د حضرت عمر رضي الله عنه مسلمانېدل

حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت حمزه رضي الله عنه له مسلمانېدو څخه درې ورځې وروسته د بعثت په شپږم کال د ذوالحجې په میاشت کې مسلمان شو.

## د عمر رضي الله عنه او نعیم رضي الله عنه تر منځ خبرې

حضرت عمر رضي الله عنه د هغې دښمنۍ له مخې چې د حضرت محمد ﷺ سره یې درلوده یوه ورځ د محمد ﷺ د وژلو په تکل له خپل کور څخه ووت.

د لارې په اوږدو کې د نعیم بن عبدالله العدوي سره مخامخ شو، هغه پوښتنه وکړه:

عمره! چیرته ځې؟ عمر رضي الله عنه وویل: غواړم چې محمد ووژنم.

نعیم وویل: که محمد ووژنې، نو د بني هاشمو او بني زهرۀ له دښمنۍ څخه به څرنګه ځان وژغورې؟

عمر رضي الله عنه وویل: معلومېږي چې خپل دین دې پرېښی دی او بې دینه شوی یې.

نعیم ورته وویل: عمره! یوه حیرانونکې خبره درته وکړم؟ ستا خور او د خور خاوند (اوښی) دې هم بې دینه شوي دي.

د دې خبرې په اورېدو سره د عمر رضي الله عنه څېره له غوسې سره شوه، د هغوی د کور په لور روان شو.

خباب رضي الله عنه چې هغوی ته د قرآن تعلیم ورکاوه د عمر رضي الله عنه په لیدو ځان ګوښه کړ او د عمر رضي الله عنه خور فاطمې رضي الله عنها له عمر رضي الله عنه څخه د قرآن پاڼه پټه کړه، څرنګه چې عمر رضي الله عنه کور ته د ننوتلو پر مهال د خباب رضي الله عنه قرائت اورېدلی و، نو پوښتنه یې وکړه: دا ورو غږ د چا و؟

هغو ځواب ورکړ: هېڅ نه و، موږ په خپلو کې خبرې کولې.

عمر رضي الله عنه وویل لکه چې بې دینه شوي یاست.

## د خور او اوښي ځواب

اوښي يې وويل: عمره! که چېرې ستا له دين څخه پرته بل دين حق وي؟

عمر رضي الله عنه په خپل اوښي سعيد بن زيد رضي الله عنه بريد وکړ او هغه يې ډېر زيات وواهه، خور يې راغله او غوښتل يې چې خپل خاوند له ورور څخه خلاص کړي. عمر رضي الله عنه هغه هم په درنه څپېړه ووهله چې له مخ څخه يې وينې روانې شوې. خور يې د قهر او غوسې په حال کې وويل: عمره! حق ستا د دين څخه پرته په بل دين کې دی، بيا يې د توحيد کلمه په جهر سره وويله.

## د عمر رضي الله عنه په زړه کې د اسلام ځای نيول

عمر رضي الله عنه چې کله د اسلام په دين باندې د دوی ټينګار او ثبات وليد او له بلې خوا يې د خپلې خور مظلوميت او وينې ولېدلې، خورا پښېمانه شو او په مات زړه يې پوښتنه وکړه:

ښه ده، ستاسې کتاب راکړئ چې زه يې ولولم.

خور يې چې ډېره کرېدلې وه، عمر رضي الله عنه ته داسې وويل: ته ناولی يې او قرآن کريم بايد په پاکو لاسونو واخيستل شي، که غواړې چې قرآن ولولې، نو پاڅه غسل وکړه. عمر رضي الله عنه پاڅېده او غسل يې وکړ، قرآنکريم يې راواخيست او شروع يې وکړه، د عمر رضي الله عنه سترګې په (بسم الله الرحمن الرحيم) ولګېدی، ويې ويل: دا څومره پاک او سپېڅلي نومونه دي؟ بيا يې د (طٰه) سورت تلاوت پيل کړ، ترڅو د (إِنَّنِيٓ أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدۡنِي وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكۡرِيٓ ) د طه سورت ١٤آيت ته ورسېد.

ژباړه: (يقيناً همدا زه الله يم، له ما پرته بل برحق معبود نشته، نو همدا زما عبادت وکړه او زما په ياد لمونځ اداکړه.)

بيا يې وويل: دا څومره ښې او ښکلې خبرې دي؟ ماته محمد صلی الله علیه وسلم راوښيئ.

## د حضرت عمر رضي الله عنه لارښوونه دار ارقم ته

خباب رضي الله عنه چې کله د حضرت عمر رضي الله عنه خبرې واورېدلی، ځان يې ښکاره کړ او ويې ويل: هيله من يم چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دعا ستا په حق کې قبوله شوې وي.

حضرت عمر رضي الله عنه بيا خپله توره راواخيسته او د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په وړاندې د اسلام د منلو لپاره دار ارقم ته روان شو.

## حضرت عمر رضي الله عنه په دار ارقم کې

دار ارقم ته په رسېدو سره حضرت عمر رضي الله عنه دروازه وټکوله، يوه صحابي عمر رضي الله عنه وليد چې له خپلې





توري سره ولاړ دی، پېغمبرﷺ يې خبر کړ، حضرت حمزهؓ وويل: دروازه ورته خلاصه کړئ، که د خير په نيت راغلی وي خير به ورته وروسي او که په بد نيت راغلی وي، نو په خپله توره به يې سر غوڅ کړم.

کله چې حضرت عمرؓ د رسول اللهﷺ حضور ته ورغی پېغمبرﷺ هغه له ګرېوان څخه ونيو او خپلې خواته يې راکش کړ او ورته يې وويل: عمره! ته له مخالفت څخه لاس نه اخلې، غواړې چې د وليد بن مغيره په څېر پايله ولرې؟

حضرت عمرؓ وويل: (اشهد ان لا اله الاالله و انک رسول الله) او د اسلام سپېڅلی دين يې قبول کړ.

## حضرت عمرؓ ته د فاروق لقب ورکول

کله چې عمرؓ مسلمان شو رسول اللهﷺ ته يې وويل آيا موږ د ژوند او يا مرګ په دواړو حالاتو کې په حقه نه يو؟ رسول اللهﷺ ورته وفرمايل: قسم مې دې په هغه ذات وي چې زما ژوند د هغه په لاس کې دی، تاسې په حقه يئ که تاسې مړه شوی او يا ژوندي.

حضرت عمرؓ وويل: نو بيا ولې خپل اسلام نه څرګندوو؟ سوګند مې دې په هغه ذات وي چې ته يې په رښتيا رالېږلی يې موږ به خامخا اسلام خلکو ته څرګندوو.

هماغه و چې مسلمانان د رسول اللهﷺ په ملتيا په دوو کتارونو کې د حرم په لور ووتل او حرم ته ورسېدل، قريشو دوی ته کتل، خو د حضرت عمرؓ او حضرت حمزهؓ شتون د قريشو غرور مات کړ، هغوی دوی ته هېڅ ډول ضرر ونه رساوه، رسول اللهﷺ په همدې ورځ حضرت عمرؓ ته د فاروق لقب ورکړ.

## د لوست ګټې

۱. د پياوړو، مخلصو او مخورو مسلمانانو په يووالي سره د مسلمانانو ليکې ټينګښت مومي.

۲. څوک چې د حقيقت په لټه کې وي ضرور به اسلام ته مخه کوي، که څه هم د اسلام د سرسختو مخالفينو څخه وي.

۳- د اسلامي دعوت په لار کې استقامت او صبر کول د رښتينو مسلمانانو له صفاتو څخه دي.








د دې لوست څخه که نورې ګټې اخیستل کېږي، څرګندې یې کړئ.




الف: لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱_ حضرت عمر رضی الله عنه د بعثت په کوم کال مسلمان شو؟

۲_ د حضرت عمر رضی الله عنه د اسلام قبلولو لامل څه و؟

۳_ حضرت عمر رضی الله عنه د خپلې خور په کور کې د کوم سورت آیتونه تلاوت کړه؟

٤_ ولې حضرت عمر رضی الله عنه ته د فاروق لقب ورکړل؟

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱_ کله چې حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د وژلو په نیت توره په لاس وووت، په لاره کې (        ) په مخه ورغی.




د دې لوست مطالب په لنډ ډول د یوې مقالې په ترڅ کې په خپله ژبه او خپل ځانګړې تعبیر ولیکئ.



## اته ویشتم لوست

# هر اړخیز پرېکون

### هغه پېښې چې مشرکان يې اندېښمن کړل

د څلورو اونيو ځخه په لږه موده کې مشرکان له څلورو لويو پېښو سره مخ شول، دغو پېښو مشرکان هک پک حيران کړل چې هغه عبارت دي له:

١. د حضرت حمزه رضي الله عنه مسلمانېدل.

٢. د حضرت عمر رضي الله عنه مسلمانېدل.

٣. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له اړخه د مشرکانو د روغې جوړې د وړانديزونو نه منل.

٤. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د دفاع او ملاتړ لپاره د بني هاشم او بني عبدالمطلب تړون.

دې پېښو مشرکان په اندېښنه کې واچول او په دې پوه شول که چېرې دوی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته لاس اوږد کړي، نو د مکې لارې او کوڅې به د دوی په وينو رنګ شي، له دې امله يې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له وژلو څخه لاس واخيست او يو بل ډول ظلم او تېري ته يې ملا وتړله.

## د ظلم او تېري تړون

د بعثت په اووم کال د قريشو مشرکان په بني کنانه کې راټول شول او داسې پرېکړه يې وکړه چې له دې وروسته به د بني عبدالمطلب او بني هاشم سره (پرته له ابو لهب څخه)، نه څوک خپلوي کوي نه به پرې څه خرڅوي، نه به ورسره راشه درشه کوي او نه به ورسره خبرې کوي، ترڅو يې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د وژلو لپاره دوی ته نه وي سپارلی، همدارنګه ورزياته يې کړه چې د هاشم له کورنی سره به هېڅ ډول روغه جوړه، نرمي او خوا خوږي نه کېږي، بيا يې دغه تړون د کعبې شريفې په منځ کې راوځړاوه، د يادونې وړ ده چې د دې تړون د ليکونکي لاسونه هماغه مهال شل شول.

هماغه و چې د دغه تړون ټول غړي (مسلمان او کافر) د بعثت په اووم کال د محرم د مياشتې په لومړۍ ورځ د ابوطالب په وادي (شعب ابي طالب) کې محاصره شول. محاصره ورځ په ورځ سختېده، د خوراک او څښاک ټول وسايل پر مسلمانانو بند شول، مشرکانو هېڅ شی نه پرېښود چې مسلمانانو ته ورسېږي، په پای کې مسلمانان دې زړه بوږنوونکي حالت ته ورسېدل چې د ونو پاڼې او د حيواناتو

وچ پوستکي وخوري.

د کوچنیانو او ښځو ژړاګانې له لیرې ځایونو څخه اورېدل کېدی.

د بندیز درې کاله تېر شول، د بعثت په لسم کال د محرم په میاشت کې د محاصرې د ترون ناخوښه کسان د حجون په سیمه کې د دې ظالمانه بندیز د ماتولو لپاره راټول شول، زهیر وویل: سبا به زه لومړی کس یم چې د قریشو ټولنې ته به په دې هکله خبره کوم.

له وعدې سره سم هر سهار خپل ځان حرم ته ورساوه، زهیر چې نوې جامې یې اغوستې وې، لومړی یې د کعبې طواف وکړ، بیا یې خلکو ته مخ کړ او ویې ویل: ای د مکې خلکو! دا کوم انصاف دی؟ موږ په مړه ګېډه خوراکونه کوو، نوې جامې اغوندو او د هاشم کورنی له لوږې هلاکېږي، قسم په الله جَلَّ جَلَالُهُ چې د دې ظالمانه ترون پاڼه به ارومرو شکوم.

ابوجهل چې د مسجد په یوه څنډه کې ناست و، ورغبرګ کړ: تا دروغ وویل، قسم په الله جَلَّ جَلَالُهُ چې دا پاڼه به هېڅکله هم نه شکېږي.

وروسته بیا زمعة بن الاسود، ابوالبختري، مطعم بن عدي او هشام بن عمرو په خپل وار سره د زهیر خبرې تائید کړې او د پاڼې د شکولو خبرې یې وکړې او ابوجهل یې پرله پسې مخالفت کاوه.

## د بندیز د ختمولو په هکله د ابوطالب وړاندیز

ابوطالب هم په دغه غونډه کې موجود و او د دې لپاره راغلی و، ترڅو خلکو ته ووایي چې الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته خبر ورکړی چې په دې پاڼه وینه (چینجی) اخته شوی دی او پرته د الله جَلَّ جَلَالُهُ له نوم څخه یې نورې د ظلم او تېرې ټولې کلمې خوړلي دي، که چېرې د هغه خبر ې دورغ وي، نو زه به له منځه ووځم، تاسې پوه شه او هغه، که چېرې زما د وراره خبره سمه او ریښتیا وه، نو تاسې باید په موږ ظلم او تېری بند کړئ او بندیز ختم کړئ.

قوم وویل: د انصاف خبره دې وکړه.

وروسته له دې چې د قوم د خلکو او ابوجهل ترمنځ خبرې تاوې راتاوې شوې مطعم بن عدي پاڅېده، ترڅو لیکلې پاڼه وشکوي، ګوري چې چینجو ټوله خوړلې ده او یوازې د الله تعالیٰ پاک نوم پاتې دی، په دې ترتیب ترون لیک وشکېده، رسول الله ﷺ او ملګري یې له محاصرې څخه خلاص شول، مشرکانو د رسول الله ﷺ د نبوت د ریښتینولی ډېر لوی او ستر دلیل په غوږېدلو سترګو ولید.

## د لوست ګټې

۱. اقتصادي بندیز مسلمانان په ډول ډول تکالیفو او ستونزو اخته کړل.

۲. په انسانانو باندې د خوراکي توکو بندول هغه ظالمانه منطق دی چې د تاریخ په اوږدو کې مستبدو او ناترسو ظالمانو کارولی دی.

۳. د اسلام د سپېڅلي او مقدس دین د ساتلو لپاره مسلمانانو ډېرې ستونزې ګاللي دي.

٤. اقتصادي محاصره داسې یو ناروا کار دی چې د ضمیر او وجدان لرونکي مشرکانو هم د هغې مخالفت وکړ.




الف: لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱ـ د تړون مهم ټکي ولیکئ.

۲ـ د ظلم او تېري تړون څومره موده دوام وکړ؟

۳ـ د دې تړون د ماتولو بهیر څرنګه و؟ څرګند یې کړئ.

٤ـ د دې تړون لیکونکي ته څه پېښ شول؟ بیان یې کړئ.

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱ـ د مسلمانانو محاصره د بعثت په (         ) کال د محرم د میاشتې له لومړۍ نېټې پیل شوه.

۲ـ د مسلمانانو محاصره د بعثت په (         ) کال د محرم په میاشت کې ختمه شوه.

ج: د صحیح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کېږدئ.

۱ـ د دغه تړون پرېکړه لیک د کعبې په منځ کې وځړول شو. (   )

۲ـ پرېکړه یې داسې وه چې مسلمانان به په مدینه منوره کې محاصره وي. (   )




د دې لوست مطالب په لنډه توګه د یوې مقالې په ترڅ کې په خپل تعبیر او خپله ژبه ولیکئ.





# د غم کال (عام الحزن)

## د ابو طالب مړینه

د نبوت په لسم کال کله چې محاصره ختمه شوه او مسلمانان بېرته مکې مکرمې ته راستانه شول، د همدې کال د رجب په میاشت کې ابوطالب چې د مسلمانانو لپاره د ډال حیثیت درلود، وفات شو.

ابوطالب د هغې سترې کلا په څېر و چې مسلمانان یې د مشرکانو له ظلم او تېري څخه ژغورلي وو، خو بدبختانه په خپله یې ترې ګټه وانخیسته او د خپلو نیکونو په زاړه دین مړ شو.

## له پیغمبر ﷺ سره د ابوطالب له مړینې وروسته د قریشو له خوا ظلم او تېری

د ابوطالب له مړینې وروسته په رسول الله ﷺ د مشرکانو د ظلم او تیرې جرئت لا زیات شو او هغه یې د ډېرو ستونزو، غمونو او کړاوونو سره مخ کړ، یوه ناپوهه قریشي په رسول الله ﷺ باندې مرداري خاورې واچولې، پیغمبر ﷺ په هماغه حالت کور ته ولاړ، فاطمې رضي الله عنها چې د ده دا حالت ولید په ژړا شوه او سر یې ورته ومینځه، رسول الله ﷺ ورته وویل: لورکۍ! مه ژاړه، پاک الله ﷻ به ارو مرو ستا پلار ژغوري. رسول الله ﷺ به ویل: ماله قریشو څخه د ابوطالب په ژوندکې داسې بد چې زه یې ځورولم، نه وو لیدلي.

## خدیجه الکبرىٰ رضي الله عنها د الله تعالیٰ د رحمت په لور

خدیجه الکبرىٰ د ابوطالب له مرګ څخه څه موده وروسته وفات شوه. خدیجه الکبرىٰ رضي الله عنها د الله ﷻ له لورې رسول الله ﷺ ته یوه ستره پیرزوینه وه چې د یوې پیړۍ څلورمه برخه یې ورسره تېره کړه چې د غم په وخت به یې پر رسول الله ﷺ شفقت او مهرباني کوله او د دعوت په خپرولو کې یې ملګرې وه.
رسول الله ﷺ د هغې په هکله فرمایي: هغه وخت یې پر ما ایمان راوړ چې خلکو نه منلم، هغه وخت یې ریښتینی وګڼلم، چې نورو راته دروغجن ویل او هغه وخت یې په خپل مال کې برخمن کړم چې هیچا څه نه راکول او الله پاک ﷻ له هغې څخه اولاد راکړ.

## د طایف په لور د پیغمبرﷺ سفر او له هغه سره بد سلوک

د څو اونیو په ترڅ کې چې کومې غمجنې پېښې منځته راغلې رسول اللهﷺ یې ډېر دردولی و، د ابوطالب له مړینې وروسته د اسلام د دښمنانو تېری نور هم زیات شو، رسول اللهﷺ پرته له دې چې طایف ته (چې مکې مکرمې ته تر ټولو لنډ ښار دی) سفر وکړي بله کومه چاره نه درلوده، ترڅو له دې لارې وکولی شي د طایف خلک اسلام ته را وبولي او هغوی د ده ملاتړ وکړي، خو د طایف خلکو نه یواځې دا چې د رسول اللهﷺ بلنه یې ونه منله، بلکې ده ته یې ډېرې ستونزې او تکلیفونه ورسول، د کاڼو په ویشتلو یې دی ډېر ژوبل کړ، تر دې چې پښې یې له وینو ډکې او بدن مبارک یې په وینو سور شو.

### د لوست ګټې

۱- د الله تعالی له ازموینو څخه دا دی چې اسلامي دعوتګران په تکلیفونو او ستونزو اخته کوي، تر څو وکولی شي د دعوت درونډ پېټی او دنده په سمه توګه پرمخ بوځي.

۲- په اسلامي دعوت او د ټولنې په اصلاح کې د مسلمانې ښځې رول ډېر ارزښناک دی او باید مسلمانه ښځه د اسلامي دعوت په وړاندې خپل رسالت اداء کړي.

ام المؤمنین خدیجه رضي الله عنها د رسول اللهﷺ څخه پنځلس کاله مشره وه، خو د هغې د حقې لارې ملګرتیا او د رسول اللهﷺ سره مخلصانه همدردي او خوا خوږي، رسول اللهﷺ دې ته اړ باسه ترڅو د نورو ازواجو په پرتله د هغې ښېګڼې وستایي.

صالحه ښځه په اسلامي ټولنه کې ډېر مهم رول لوبولی شي.




الف: د دې لوست مهم ټکي په مختصر ډول ووایاست.

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱ـ ابوطالب د بعثت په (        ) کال د (        ) په میاشت کې وفات شو.

ج: د صحیح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کېږدئ.

۱ـ ابوطالب د رسول اللهﷺ نیکه و. (    )

۲ـ د بعثت اتم کال د غم په کال ونومول شو. (    )




د دې لوست مطالب په مختصر ډول د یوې مقالې په ترڅ کې په خپل تعبیر او خپله ژبه ولیکئ.



دیرشم لوست

## طایف ته د رسول اللهﷺ د سفر تفصیل

د بعثت په لسم کال کله چې رسول اللهﷺ له خپل قوم څخه مایوسه شو، په دې هیله طایف ته روان شو چې د طایف خلك به يې بلنه ومني. طایف د مکې مکرمې په (۷۰) کیلومترۍ کې پروت دی.
په دې ستونزمن سفر کې زید بن حارثه هم له ده سره ملګری و. رسول اللهﷺ به چې په هر کلي تېرېده، هغوی به يې اسلام ته رابلل.

### له طایف څخه د رسول اللهﷺ ویستل

رسول اللهﷺ لس ورځې په طایف کې تېرې کړې، د طایف له ټولو مشرانو سره یې خبرې وکړې او هغوی یې د اسلام سپېڅلي دین ته راوبلل، خو هغوی په یوه خوله په ډېر ذلت او سپکاوي، ازار او تکلیف ورکولو له طایف څخه د رسول اللهﷺ د ویستلو پرېکړه وکړه، هماغه و چې دوی خپل ناپوهان په رسول اللهﷺ پسې راوپارول، ترڅو هغه ته بدې خبرې وکړي هغه پسې چغې ووهي او په کاڼو یې وولي، چې په پایله کې رسول اللهﷺ په کاڼو وویشتل شو او پښې مبارکې یې په وینو رنګ شوې.
زید بن حارثهرضي الله عنه به هڅه کوله تر څو له رسول اللهﷺ څخه دفاع وکړي او خپله د ډبرې مخ ته ودرېږي. چې پایله کې په سر او مخ زخمي شو.
ناپوهانو خپلو ویشتلو ته دوام ورکړ تر دې چې رسول اللهﷺ دې ته اړ شو، څو د عتبه او شیبه باغ ته چې له طایف څخه څلورنیم کیلومتره لرې پروت و، پناه یوسي.

### د پیغمبرﷺ دعا

رسول اللهﷺ وروسته له دې چې د عتبه او شیبه باغ ته خواشینی ننوت د انګورو تاك ته يې تکیه وکړه او داسې يې وویل: (یاالله! زه ډېر ضعیف او ناتوان یم، هېڅ مې په وس کې نشته، خلك هم په سپکه

راته گوري، ای ارحم الراحمين! ته د ټولو کمزورو خدای ﷻ يې او زما هم رب يې، ته مې چاته سپارې؟ پردي ته چې سختي راسره کوي؟ يا کوم دښمن ته چې زما واك تا په لاس کې ورکړی دی؟
که ته راباندې په غوسه نه يې هېڅ باك مې نشته، ستا ببښنه خورا پراخه ده، ستا په هغه روښانه مخ چې تيارې پرې رڼا او د دنيا او اخرت ورانې پرې سمېږي، ستا له قهر څخه پناه غواړم، له خپل غضب څخه مې وژغوره، تا ته مې پناه دروړې ده چې ته راضي شې، له ګناه څخه ځان ژغورل او په طاعت صبر او استقامت کول ستا له توفيق پرته ناشوني دي.

## د عداس سره پېژندګلوي

کله چې د ربيعه زامنو رسول الله ﷺ په ډېر مظلوم حالت وليد زړونه يې پرې وخوږېدل، عداس نومي خپل نصراني غلام ته وويل چې د انګورو يو وږی رسول الله ﷺ ته يوسي، کله چې عداس د انګورو وږی د رسول الله ﷺ په وړاندې کېښود، رسول الله ﷺ لاس اوږد کړ او د بسم الله په ويلو يې په خوراك پيل وکړ.
عداس وويل: د دې وطن خلك دا کلمات نه وايي. پېغمبر ﷺ ورته وويل: ته د کوم وطن يې؟ او په کوم دين يې؟
عداس وويل: زه نصراني يم، له نينوا څخه.
پېغمبر ﷺ ورته وويل: د نېک سړي يونس بن متی عليه السلام له کلي څخه؟ عداس پوښتنه وکړه: يونس بن متی عليه السلام څه پېژنې؟
رسول الله ﷺ ځواب ورکړ، هغه زما ورور دی، هغه پېغمبر و او زه هم.
عداس د دې خبرې په اورېدو سره منډه کړه او د رسول الله ﷺ لاسونه او پښې يې ښکل کړې.
د ربيعه زامنو عداس وليد، کله چې عداس راغی نو هغوی ورته وويل: هلاك شې، دا دې څه وکړل؟
عداس وويل: د ځمکې په سر له ده څخه بل څوك غوره نشته، ماته يې داسې خبرې وکړې چې پرته له انبياؤو څخه يې بل څوک نشي کولی.
هغوی وويل: هلاك شې له دين څخه دې وانه ړوي، ځکه ستا دين د هغه له دين څخه غوره دی.

## رحمة للعالمين پېغمبر ﷺ

پېغمبر ﷺ خورا ستړی او خواشينی د مکې لور ته روان شو، د لارې په اوږدو کې ورته جبرائيل عليه السلام وويل: الله تا سره ستا د قوم په کړنو خبر دی، که غواړې، نو د مکې غرونه به پر دوی يو ځای کړم.

رسول اللهﷺ ځواب ورکړ: زه هیله من یم چې پاک الله جل جلاله به د دوی په راتلونکي نسل کې مسلمانان پیدا کړي او داسې دعا یې وکړه: (اللهم اهد قومي فانهم لایعلمون).
ژباړه: خدایه! ته زما قوم ته هدایت وکړه، دوی ناپوهان دي.

## اسراء او معراج

په همدغه شپو او ورځو کې چې پیغمبرﷺ ډېر غمجن او خواشینی و، د اسراء او معراج پېښه رامنځته شوه.
رسول اللهﷺ د جبرائیل علیه السلام په ملتیا له مسجد الحرام څخه بیت المقدس ته یوړل شو او بیا هماغه مهال له بیت المقدس څخه آسمانونو ته پورته شو.
د رسول اللهﷺ تګ له مسجدالحرام نه بیت المقدس ته په قرآن عظیم الشان ثابت دی، بیا له بیت المقدس څخه آسمانونو ته ختل په مشهورو احادیثو ثابت دی.

## د لوست ګټې

۱- رسول اللهﷺ ته ستونزې او تکالیف پېښېدل، د هغو مصلحینو او داعیانو لپاره یو ښه درس دی کوم چې د ټولنې د دعوت او اصلاح په لار کې له ستونزو سره مخامخ کېږي.
۲- د اسلام نعمت چې د هغه له برکته د نړۍ ټول مسلمانان په امن، سوکالۍ او وروګلوۍ سره ژوند تېروي، د ډېرو ستونزو، تکالیفو او ربړونو (چې ترټولو وړاندې پیغمبرﷺ ګاللي دي) په زغملو خپور شوی دی، نو لازمه ده چې هر وخت پر رسول اللهﷺ باندې درود او سلام ووایو.
۳- پیغمبرﷺ رحمة للعالمین دی، هېڅکله یې هم پر نورو د ظلم او تېري پلوي نه ده کړې او هر وخت په دې هڅه کې و ترڅو د نورو د ظلم او تېري په مقابل کې له نیکۍ، ترحم او ښښنې څخه کار واخلي.
٤- د اسراء او معراج د ارزښت بیانول او د پیغمبرﷺ د عروج د ځای او د مسلمانانو د لومړنۍ قبلې (مسجد اقصی) لوړ مقام په ګوته کول چې باید د مسلمانانو له لوري یې ساتنه وشي.





## فعالیت

زده کوونکي دې د مضمون د ښوونکي په مرسته د مسجد اقصی د ارزښت او د مسلمانانو د لومړنۍ قبلې او نبي کریم ﷺ د عروج د ځای په اړه د مسلمانانو د مکلفیتونو په هکله یو له بل سره مباحثه وکړي.

## ارزونه

الف: لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

کله چې پېغمبر ﷺ له خپل قوم څخه مایوسه شو، نو چېرته ولاړ؟

د طایف په سفر کې د پېغمبر ﷺ ملګری څوک و؟

پېغمبر ﷺ په کوم کال طایف ته ولاړ؟

د اسراء او معراج په هکله خپل معلومات څرګند کړئ.

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

طایف له مکې مکرمې څخه (      ) کیلومتره لیرې دی.

رسول الله ﷺ (      ) ورځې په طایف کې تېرې کړې.

ج: د سم عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه ولیکئ.

مکه مکره له طایف څخه (۳۰) کیلومتره لیرې ده. (   )

عداس وویل: زه نصراني یم له نینوا څخه. (   )

د پېغمبر ﷺ تګ له مسجدالحرام نه بیت المقدس ته په قرآن عظیم الشان ثابت دی او د هغه تګ له بیت المقدس نه آسمانونو ته په مشهورو احادیثو ثابت دی. (   )

## کورنۍ دنده

د دې لوست مطالب په لنډ ډول د یوې مقالې په ترڅ کې په خپل تعبیر او خپله ژبه ولیکئ.



# د عقبې لومړنی بیعت

### له بیعت څخه د مخه
عقبه په مکه مکرمه کې د يو ځاى نوم دی چې د مسجدالحرام په پنځه کیلومترۍ کې د جمراتو (کوم ځاى کې چې شیطانان ویشتل کېږي) ترځنګ پروت دی، د جزيرة العرب د خلکو به دا عادت و چې د حج په موسم کې به د کعبې شريفې د زيارت لپاره مکې مکرمې ته راتلل، د نبوت په يوولسم کال هم د مدينې منورې شپږ تنه مشران مکې مکرمې ته راغلل، له رسول اللهﷺ سره يې وعده وکړه چې د ده پيغام به خپلو خلکو ته رسوي.

## د عقبې لومړنی بیعت
د بعثت په (۱۲) کال د مدينې منورې (۱۲) تنه اوسېدونکي چې پنځه تنه يې تېر کال هم راغلي وو، د رسول اللهﷺ په خدمت کې حاضر شول او په عقبې نومې ځاى کې يې له رسول اللهﷺ سره غونډه وکړه او هم يې له هغه سره بیعت وکړ چې دغه بیعت د عقبې په لومړني بیعت ونومول شو.

## د بیعت ټکي:
عبادة بن صامترضي الله عنه د عقبې د لومړني بیعت په هکله داسې وايي: رسول اللهﷺ موږ ته داسې وفرمايل: راشئ زماسره په دې خبره بیعت وکړئ چې:

۱_ له اللهجل جلاله سره به هېڅ شريک نه نيسئ.

۲_ غلا او زنا به نه کوئ.

۳_ اولادونه به مو نه وژنئ.

٤_ په خلکو به تور نه لګوئ.

٥_ په نيکۍ کې به زما نافرماني نه کوئ.

عباده وايي: موږ د رسول اللهﷺ سره په همدې امورو بیعت وکړ.

## په مدينه منوره کې د قرآن کريم او اسلامي روزنې ښوونکی
وروسته له دې چې بیعت ترسره شو او د حج موسم هم پاى ته ورسيد، رسول اللهﷺ يو مسلمان زلمی

د بیعت کوونکو سره یثرب ته ولېږه، ترڅو مسلمانانو ته د اسلام احکام ورزده کړي او په دین یې پوه کړي او هم د اسلام د سپېڅلي دین لپاره دعوت وکړي چې د دې ستر کار لپاره یې مصعب بن عمیرؓ غوره کړ چې یو پوه او هوښیار مسلمان زلمی و.

## مصعب بن عمیر یو بریالی داعي

مصعب بن عمیرؓ د اسعد بن زراره په کور کې استوګنه پیل کړه، دوی دواړو په مېړانه او نه ستړې کېدونکو هلو ځلو سره په یثرب کې اسلام خپراوه، مصعب بن عمیرؓ په یثرب کې د قرآن کریم په معلم مشهور شو.

## نورو ته په قناعت ورکولو کې د اخلاص او استدلال تاثیر

یوه ورځ مصعبؓ او اسعدؓ د بني ظفر د کلي په لور روان شول او د بني ظفر په یوه باغ کې چې ډېر مسلمانان هلته راټول شوي وو، کښېناستل. سعد بن معاذ او اسید بن حضیر چې د یثرب مشران وو او لاتر اوسه یې اسلام نه و راوړی، د دوی په راتګ خبر شول. سعد اسید ته وویل: ولاړ شه او دغو دوو تنو ته چې زموږ ناپوهه خلک بې لارې کوي په قهر سره ووایه چې زموږ د کورونو لور ته رانشي، اسید توره په لاس کې واخیسته او په ډېر قهر د هغوی په لور ورغی، کله چې هغوی ته ورسېد، ویې ویل: ولې دلته راغلي یئ؟ غواړئ چې زموږ ساده ګان وغولوئ، که د ځان خیر غواړئ، نو بیا دلته رانشئ.

معصبؓ ورته وویل: ډېر ښه، **آیا ته نه غواړې چې زموږ خبرې واورې؟**

که خوښې دې شوې ویې منه او که خوښې دې نه شوې، نو په زور یې څوک په تا نشي منلی.

اسید ورته وویل: خبره دې روغه ده، بیا یې توره په ځمکه وټومبله او کښېناست، مصعبؓ ورته د اسلام په هکله خبرې وکړې او قرآن کریم یې تلاوت کړ.

مصعبؓ وایي: قسم په اللهﷻ چې د ده په مخ کې د اسلام د نور روښانتیا مخکې له دې چې دی خبرې وکړي، موږ ولیده، بیا اُسَید وویل: دا څومره ښکلی او په زړه پورې دین دی! دې دین ته د داخلېدو لاره څه ده ماته یې راوښیئ.

دواړو ورته وویل: لومړی به غسل وکړې او بیا به پاکې جامې واغوندې او د شهادت کلمه به ووایې او دوه رکعته لمونځ به وکړې. همغه و چې پاڅېده غسل یې وکړ، پاکې جامې یې واغوستلې، د توحید کلمه یې وویله او دوه رکعته لمونځ یې اداکړ.

اسید وویل: زما یو بل ملګری هم شته که چېرې مسلمان شو، نو د قوم ټول خلک به مسلمانان شي.

هغه سعد بن معاذ دی، زه به یې همدا اوس تاسو ته راولېږم.

## د سعد بن معاذؓ اسلام راوړل

اسید خپله توره واخیسته او د سعد په لوري چې د قوم په منځ کې ناست و، ورغی. سعد د قوم خلکو

ته وویل: قسم په الله جل جلاله چې اسید په کومه بڼه تللی و، په هغه نه دی راغلی. اسید چې د غونډې ځای ته ورسېد، سعد ترې پوښتنه وکړه څه دې وکړل؟

ده وویل له هغوی سره مې خبرې وکړې، قسم په الله جل جلاله ما په هغو کې څه بد ونه لیدل، خو بیا هم ما منع کړل، هغوی وویل: موږ به هغه څه کوو چې ستا خوښه وي، خو په لارکې مې واورېدل چې د حارثه کورنۍ راوتلې ده چې اسعد بن زراره د دې لپاره ووژني چې هغه ستا د ترور زوی دی، سعد د دې خبرې په اورېدو سره ډېر په قهر شو، توره یې واخیسته او د هغو دواړو په لور روان شو، کله یې چې هغوی دواړه ولیدل، نو پوه شو چې اسید غوښتل ترڅو زه هم د دې دواړو خبرې واورم، بیا یې په ډېر قهر او غوسه اسعد ته وویل: ای ابو **امامة**! قسم مې دې په الله جل جلاله وي که چېرې زما او ستا ترمنځ خپلوي نه وای روغ به راڅخه نه وې تللی. آیا ته زموږ کور ته هغه څه راوړې چې موږ یې نه خوښوو؟

مصعب رضي الله عنه سعد ته وویل: آیا ته نه کښېنې ترڅو زموږ خبرې واورې؟

که دې خوښې شوې نو ویې منه او که نه په زور خو یې په تا نشو منلی.

سعد وویل: خبره مو روغه ده، بیا یې توره په ځمکه نېغه ودروله او کښېناست، مصعب رضي الله عنه ورته اسلام بیان کړ، بیا یې ورته قرآن کریم تلاوت کړ.

مصعب رضي الله عنه وایي: قسم په الله رضي الله عنه چې له خبرو وړاندې یې موږ په مخ کې د اسلام نښې ولیدې چې ځلېدې او رڼا یې کوله.

سعد رضي الله عنه وویل: غواړم مسلمان شم څه وکړم؟ هغې ورته وویل: غسل به وکړې، بیا به پاکې جامې واغوندې او د توحید کلمه به ووایې، بیا به دوه رکعته لمونځ وکړې.

سعد همداسې وکړل.

## د سعد رضي الله عنه خبرې له خپل قوم سره

سعد رضي الله عنه خپله توره واخیسته او د خپل قوم په لور روان شو، کله چې خپل قوم ته ورسېد، نو ویې ویل: ای د اشهل اولادې! تاسې ما ته په کوم نظر ګورئ؟

ټولو وویل: ته زموږ مشر او لاربنود یې.

سعد وویل: زه به ستاسې له نر او ښځو سره تر هغې خبرې ونه کړم، ترڅو چې تاسې په الله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم ایمان نه وي راوړی. مخکې له دې چې ماښام شي د قوم ټول نر او ښځې پرته له یو تن څخه (چې هغه هم وروسته مسلمان شو) مسلمان شول.

مصعب بن عمیر رضي الله عنه چې د اسعد بن زراره رضي الله عنه په کور کې استوګن و یې وکولای شول له دغه ځای څخه په ټوله مدینه منوره کې اسلام خپور کړي.

مصعب بن عمیر رضي الله عنه د نبوت د دیارلسم کال د حج له موسم څخه وړاندې مکې مکرمې ته ستون

شو او رسول اللهﷺ ته يې د کاميابۍ زېرى، د قبايلو تود او ګرم هرکلى، د هغوى نيکې او پاکې هيلې او د ملاتړ ډاډ له ځان سره راووړ.

## د لوست ګټې

۱- د اسلامي دعوت د خپروني او د ټولنې د اصلاح لپاره بايد داسې کسان وټاکل شي چې له يوې خوا مخلص وي او له بلې خوا په اسلام کې پوهه ولري.

۲- د ټولنې د مشرانو او متنفذينو په اصلاح سره کولى شو د ټولنې په اصلاح کې لويه ونډه واخلو.

۳- اسلام ته بلنه بايد د نرمۍ، نيکو خبرو، حکمت او استدلال له لارې مخ ته لاړ ه شي تر څو زړونو ته لاره پيدا او مسخر يې کړي.




د نبوي سيرت ﷺ د کتابونو په مرسته له دې لوست څخه که نورې ګټې ترلاسه کېږي، څرګندې يې کړئ.




آ. لاندېنيو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱. د عقبې لومړنى بيعت په کوم کال ترسره شو؟

۲. په لومړني بيعت کې د بيعت کوونکو شمېر څو تنه و؟

۳. د اسيد بن حضيرؓ او سعد بن معاذؓ د مسلمانېدو کيسه په لنډ ډول بيان کړئ.

ب. لاندې خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱. د نبوت په يوولسم کال د حج په موسم کې د يثرب (        ) تنه مسلمان شول.

۲. مصعب بن عميرؓ په يثرب کې په (        ) مشهور شو.




د دې لوست مطالب په لنډ ډول د يوې مقالې په ترڅ کې په خپل تعبير او الفاظو وليکئ.



# دوه دېرشم لوست

## د عقبې دویم بیعت

### د بعثت دیارلسم کال

د بعثت په دیارلسم کال د حج په موسم کې د یثرب له مشرکانو سره څه د پاسه (۷۰) تنه مسلمانان هم د حج لپاره راغلل، کله چې دوی مکې مکرمې ته راغلل له رسول اللهﷺ سره یې په پټه رابطه ونیوله چې په پایله کې په دې خبره متفق شول، ترڅو د تشریق د ورځو په لړ کې د شپې په تیاره کې په عقبه کې غونډه جوړه کړي.

### د عقبې د دویم بیعت په هکله د کعب بن مالک رضي الله عنه څرګندونه:

### کعب بن مالک رضي الله عنه فرمايي

سره له دې چې موږ له رسول اللهﷺ سره د لیدنې خبره له مشرکانو پټوله، خو یواځې عبدالله بن حرام ته مو (چې د مدینې منورې نومیالی مشر و) وویل او هغه ته مو د اسلام بلنه ورکړه، هغه قبوله کړه او اسلام یې راوړ، هماغه و چې د عقبې د بیعت له ګډون څخه برخمن او بیا وروسته نقیب (نماینده) وټاکل شو.

کعب رضي الله عنه وایي: په دې شپه له نورو خلکو سره یو ځای په خپلو ځایونو کې ویده شو، دریمه برخه شپه چې تېره شوه، نو له رسول اللهﷺ سره د وعدې په خاطر په ورو ورو راپورته شول او ټول په عقبې کې راغونډ شول او د رسول اللهﷺ د راتګ په انتظار وو.

### عقبې ته د پیغمبرﷺ راتګ

هماغه و چې پیغمبرﷺ راښکاره شو او تره یې عباس بن عبدالمطلب چې تر اوسه د خپل قوم په پخواني دین و، هم ورسره و او اړینه یې وګڼله تر څو د خپل وراره په خاطر په مجلس کې ګډون وکړي او د بیعت په اهمیت او خطرناکو پایلو له ګډون والو سره خبرې شریکې کړي.

## د بیعت د مسؤولیت او دروندوالي په هکله د عباسؓ څرګندونې

د غونډې په پیل کې عباسؓ خبرې وکړې او د یثرب مسلمانانو ته یې هغه لوی او درونډ مسؤولیت ور په ګوته کړ چې له دې تړون څخه وروسته به د دوی په اوږو پروت وي او داسې یې وویل:

ای خلکو! ... دی (حضرت محمدﷺ) په خپله غوره ګڼي له تاسو سره ولاړ شي او هلته ژوند وکړي، که تاسې باور لرئ چې له ده سره کړې وعدې پوره کولای شئ او له دښمنانو یې ژغورلای شئ، نو تاسې یې له ځان سره بوځئ او که اټکل کوئ چې دښمن ته به یې سپارئ، نو همدا اوس یې پرېږدئ، ترڅو دی په خپل قوم کې په عزت او ډاډ ژوند تېر کړي.

## د غونډې د ګډونوالو څرګندونې

کعب بن مالکؓ عباس ته وویل: ستا خبرې مو واورېدلې، بیا د غونډې ګډون والو رسول اللهﷺ ته وویل: ای د الله جل جلاله رسوله! د خدای جل جلاله او د خدای جل جلاله د رسولﷺ (ځان) لپاره چې څه ژمنې غواړې ویې غواړه، بیا رسول اللهﷺ خبرې وکړې او د بیعت ټکي یې څرګند کړل او بیعت ترسره شو.

## د بیعت بندونه

جابرؓ فرمايي: موږ رسول اللهﷺ ته وویل: په څه درسره بیعت وکړو؟ پېغمبرﷺ وفرمایل:

په سختیو او آسانیو کې د اوامرو اورېدل او منل (یعنې هر وخت).

په تنګ لاسۍ او پراخۍ کې د الله تعالی په لار کې خپل مال لګول.

په نیکیو امر کول او له بدیو څه منع کول.

د الله جل جلاله په لاره ثابت درېدل او د هېڅ ملامتوونکي له ملامتۍ څخه نه وېرېدل.

او دا چې کله زه درغلم (مدینې منورې ته)، نو ملاتړ به مې کوئ او لکه څرنګه چې د خپلو ښځو او اولادونو ساتنه کوئ همغسې به زما ساتنه هم کوئ، که داسې مو وکړل جنت به مو ځای وي.

## د بیعت کوونکو کلک او قاطع دریځ

براء بن معرور د رسول اللهﷺ لاس ونیو او ویې ویل: هو! په همدې شرطونو درسره بیعت کوم، قسم مې دې په هغه ذات وي چې ته یې په رښتیا پېغمبر رالېږلی یې، موږ به دې له هغو څیزونو ساتو له کومو چې خپل ځان ساتو، ای د الله جل جلاله رسوله! زموږ په بیعت باور ولره، قسم په الله جل جلاله چې موږ ډېر جنګیالي، توروزن او مېړني خلک یو او دا کار راته له پلرونو او نیکونو څخه په میراث پاتې شوی دی.

## د بیعت کوو نکو شرطونه

براء بن معرور(رض) له رسول الله(ص) سره خبرې کولې چې ابوالهیثم په خبرو کې ورگډ شو او ویې ویل: ای د خدای(ج) رسوله! زموږ او د دې خلکو (یهودیانو) ترمنځ اړیکې دي، موږ اوس له دوی سره اړیکې پرې کوو، هسې نه چې نن موږ دا کار وکړو او سبا چې الله(ج) تاته بری درکړي، نو ته موږ پرېږدې او خپل قوم ته ولاړ شې؟

د الله(ج) رسول تبسم وکړ او ویې فرمایل: وینه د وینې لپاره توئېږي او اړیکې د اړیکو په بدل کې پرې کېږي، زه ستاسو یم او تاسې زما یئ، له هغو سره به جنگېږم چې تاسې ورسره په جگړه کې یئ او له هغو سره به روغه کوم چې تاسې ورسره روغه کول غواړئ.

وروسته له دې چې د بیعت کار بشپړ شو، نو رسول الله(ص) له خلکو څخه غوښتنه وکړه چې له خپل منځ څخه دولس تنه نقیبان (نماینده گان) وټاکي، ترڅو د خپل قوم او د تړون د موادو د عملي کېدو څارنه وکړي، هغوی خپل دولس تنه مشران معرفي کړل چې نهه تنه یې د خزرج له قبیلې او درې تنه یې د اوس له قبیلې څخه وو.




د لومړني او دویم بیعت ترمنځ څه توپیر و؟ څرگند یې کړئ.

## د دې لوست گټې:

۱_ مشران باید په هره پرېکړه کې د نمایندگانو نظر او موافقه واخلي.

۲- لارښود باید غیرتمن وي او له خپلو خلکو سره رېښتوني واوسي.

## فعالیت

له دې لوست څخه که نورې ګټې اخیستلی شئ، څرګندې یې کړئ.

## ارزونه

الف: لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱ـ د عقبې دویم بیعت په کوم کال ترسره شو؟

۲ـ د عقبې په دویم بیعت کې د بیعت کوونکو شمېر څو تنو ته رسېده؟

۳ـ د بیعت بندونه بیان کړئ.

ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلماتو ډک کړئ.

۱ـ د یثرب له مشرکانو سره څه دپاسه (          ) مسلمانان هم حج ته راغلل.

۲ـ د نمایندګانو له ډلې څه نهه تنه (          ) او درې تنه (          ) و.

ج: د صحیح عبارت په وړاندې د (✓) نښه او د غلط عبارت په وړاندې د (✗) نښه کېږدئ.

۱ـ د عقبې دویم بیعت د بعثت په څوارلسم کال ترسره شو. (    )

۲ـ د عقبې په دویم بیعت کې د رسول الله ﷺ تره عباس هم برخه درلوده. (    )

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ښوونځي کتابتون ته ولاړ شي او د نبوي سیرت ﷺ د کتابونو په اړه دې یو لیست جوړ کړي چې لږ تر لږه شپږ کتابونه د مؤلفینو له لنډې پېژندنې سره په کې ځای پرځای کړي وي.





# ظلم تور تم او تيارې دي

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: (الظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.) متفق عليه

## د كلماتو معنا

١- الظُّلْمُ: جفا او له حد څخه تېرېدل.

٢- ظُلُمَاتٌ: تيارې، مراد ورڅخه تشويشونه او سختی دي.

## د حديث شريف معنا

له عبد الله بن عمر رضی الله تعالی عنهما څخه روايت دی چې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: (ظلم د قيامت په ورځ تيارې دي).

## د حديث شريف حکمت

ظلم د سختيو، دښمنيو، کينې او انتقام اخيستلو لامل ګرځي چې د خلکو آرامي او اطمينان له منځه وړي، نو لازمه ده چې د هر ډول ظلم مخه ونيول شي او ظالم انسان له ټولو عذابونو څخه د سخت عذاب مستحق ګرځي.

## د حدیث شریف ګټې

۱-د ظلم حرمت: د خلکو په ځان، مال او آبرو باندې ظلم او تېری کول حرام او لویه ګناه ده.

۲-ظالم به د قیامت په ورځ د خپل ظلم سزا خامخا ویني: الله تعالی هغه انسان نه ښني چې د نورو خلکو پر حقوقو تېری کوي، خو که چېري د خلکو حقونه خاوندانو ته وسپاري او هغوی ده ته ښننه وکړي، هیله ده چې الله تعالی یې وبښي، له دې څخه پرته به ظالم د قیامت په ورځ د خپل ظلم سزا ارو مرو ویني.




۱- پورتنی حدیث شریف معنا کړئ.

۲- د پورتني حدیث شریف د راوي په هکله څرګندونه وکړئ.

۳- د پورتني حدیث شریف ګټې ووایاست.




۱- د ظلم د نړوونکو تاثیراتو په اړه یوه مقاله ولیکئ.

۲- د حدیث شریف دغه برخه یاده کړئ. (الظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ).

# د نرم خوی فضيلت

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا قالت: ((كُنْتُ عَلَى بَعِيرٍ صَعْبٍ فَجَعَلْتُ أَضْرِبُهُ، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ فَإِنَّ الرِّفْقَ لَا يَكُونُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ، وَلَا يُنْزَعُ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا شَانَهُ.)) رواه أحمد

## د راوي پېژندنه

نوم يې حضرت عايشه رضي الله عنها د حضرت ابوبکر صديقؓ لور او د پيغمبرﷺ ميرمن او د مسلمانانو مور ده. د هجرت په دويم کال پيغمبرﷺ ور سره نکاح وکړه. خورا فقيهه او عالمه وه، په ځانګړي ډول د پيغمبرﷺ د ژوندانه له جزئياتو څخه يې پوره آګاهي درلوده، له پيغمبرﷺ څخه يې زيات شمېر احاديث روايت کړي دي او د هجرت په (٥٨) کال وفات شوه.

## د کلماتو معنا

١. بَعِيرٍ صَعْبٍ: شوخ اوښ

٢. فَجَعَلْتُ أَضْرِبُهُ : د هغه په وهلو مې پيل وکړ.

٣. عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ: پر تا لازمه ده تر خو نرمي او لطف وکړې.

## د حدیث شریف معنا

له حضرت عایشې صدیقې(رضی الله عنها) څخه روایت دی چې زه یوه ورځ په شوخ او ناآرامه اوښ سپره وم، او ما د هغه اوښ په وهلو پیل وکړ تر څو هغه اوښ آرامه شي، پیغمبرﷺ راته وویل: پر تا لازم دي چې له دې اوښ سره د نرمۍ او لطف څخه کار واخلې، ځکه چې هر کار په نرمۍ او لطف سره ښائسته کېږي او هر کار چې نرمي او لطف پکې نه وي، ښه نه ښکاري او پای یې ناوړه وي.

## د حدیث شریف حکمت

سختي او تېزي د ټولو ظلمونو، دښمنیو، جګړو او خفګانونو اساس دی، مګر نرمي او لطف هېڅکله هم د داسې ستونزو لامل نه ګرځي، بلکې انسان کولی شي په نرمۍ او لطف سره ټولې ستونزې له منځه یوسي، په همدې بناء پیغمبرﷺ په نرمۍ، لطف او شفقت امر کړی دی.

## د حدیث شریف ګټې

۱.په وینا او کړنو کې نرمي: انسان باید په خپلو خبرو کې محتاط اوسي او کوښښ وکړي چې مهرباني، شفقت او نرمې خبرې خپل عادت وګرځوي تر څو الله تعالی او د هغه بندګان ورسره محبت وکړي. په یو بل حدیث شریف کې راغلي دي: (( نرمي او مهرباني د الله تعالی صفت دی او هغه نرمي او مهرباني خوښوي)).

۲.پر حیواناتو نرمي او شفقت کول: پر ټولو ژوندیو ژوو شفقت او مهرباني کول لازم دي، آن تر دې چې د هغه سرغړوونکي حیوان سره چې د خطر وېره ترې هم کېږي باید په نرمۍ چلن وشي.

۳.له قهر، غوسې او بدخویۍ څخه ځان ژغورل: د قهر او بدخویۍ په حالت کې انسان خپل اعصاب له لاسه ورکوي او کله ناکله ډېر خطرناک او ناوړه کارونه ورڅخه ترسره کېږي چې بیا وروباندې پښېمانه وي. ډېر وختونه سختي او بد خویي په مقابل لوري کې هم سختي پیدا کوي او د دې کار پایلې داسې اندازې ته ورسېږي چې یو لوری هم وروباندې خوښ نه وي. په همدې اساس په کار ده چې سختي او بد خویي پرېږدو او خپل ځانونه په لطف، مهربانۍ او حوصلې عادت کړو، تر دې

پورې چې د سختۍ په مقابل کې له حوصلې او نرمۍ څخه کار واخلو.

٤. د نرمۍ او مهربانۍ له کبله هر کار ښائسته کېږي: انسان کولای شي چې د نرمۍ او لطف نتیجه په خپلو سترګو ووینې هغه داسې چې په لطف او مهربانۍ سره هر کار ښائسته او په ډېره غوره اوسمه توګه سرته رسېږي.



## ارزونه

١. لاندې عبارتونه ترجمه کړئ:

**بَعِيرٍ صَعْبٍ:** **فَإِنَّ الرِّفْقَ لَا يَكُونُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ:**

٢. د حدیث شریف اجمالي معنا بیان کړئ.

٣. د حدیث شریف ګټې بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

١. لاندې عبارتونه له معنا سره حفظ کړئ:

**عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ فَإِنَّ الرِّفْقَ لَا يَكُونُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ**

٢. د لوست د حدیث شریف په اړه یوه مقاله ولیکئ او د خپلې مقالې له پاره یو مناسب عنوان وټاکئ.





# زغم او حوصله

عَن أبِي هُرَيرَة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلي الله عليه وسلم:
(لَيسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرعَةِ، إنَّمَا الشَّدِيدُ اَلَّذِي يَملِكُ نَفسَهُ عِندَ الغَضَبِ.)
متفق عليه

## د کلماتو معنا

| | |
|---|---|
| الشَّدِيدُ : | قوي او پهلوان. |
| بِالصُّرعَةِ: | د مقابل لوري په ځملولو. |
| اَلَّذِي يَملِكُ نَفسَهُ: | هغه کس چې ځان په کنترول کې ساتي. |

## د حديث شريف معنا

له حضرت ابوهریرهرضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبرصلی الله علیه وسلم وفرمايل: هغه څوک قوي نه دی چې په پهلوانۍ کې خپل مقابل لوری ځملوي، بلکې رښتنی قوي هغه څوک دی چې د غوسې پر مهال ځان کنترول کړي.

## د حدیث شریف حکمت

د انسان له بدو خصلتونو څخه یو غوسه ده چې د غوسه کوونکي په اخلاقي کمزورتیا او ناوړه تربیت دلالت کوي او خورا بدې پایلې لري؛ ځکه انسان د غوسې په وخت کې ځان نشي کنټرولولای او خپل اعصاب کنټرول کولای نشي. او په ډېرو وختونو کې د خپل غچ اخیستلو په فکر کې وي او خپل خیر او زیان په نظر کې نه نیسي، چې په پایله کې نه جبرانېدونکي کارونه ورڅخه تر سره کېږي. له همدې امله پیغمبرﷺ انسانانو ته داسې لارښوونه کوي چې د غوسې په حالاتو کې هم پر خپل ځان کنټرول ولري او د غچ اخیستلو او زور آزمایني په فکر کې ونه اوسي.

## د حدیث شریف ګټې

۱.قوي او پهلوان هغه کس دی چې حوصله ولري: د قهرمانۍ او پهلوانۍ لقب له هغه چا سره ښایي چې د غوسې په وخت پر خپل ځان کنټرول او واک ولري او داسې څه ورڅخه ترسره نه شي چې له هوښیارۍ او عقل څخه لرې وي اوپه راتلونکي کې د خفګان او پښېمانۍ لامل وګرځي.

۲ .د غوسې پر وخت باید حوصله ولرو: څرنګه چې د هر انسان غوښتنه وي چې د غوسې پر وخت خپل ځان پهلوان ښکاره کړي او د مقابل لوري د ځملولو په فکر کې وي تر څو د زور ازمايلو له لارې خپل هدف ته ورسېږي او خپل حق تر لاسه کړي، مګر د الله تعالی پیغمبرﷺ دغه عمل ناسم بولي او توصیه کوي چې زور ازمایل په حوصله او صبر کې دی.

۳ .په خلکو کې د پیغمبرﷺ د دې پیغام خپرول: پر خپل ځان باندې د دې حدیث شریف په تطبیقولو دې بسنه ونه شي، بلکې لازمه ده چې نور خلک هم له دې پیغام څخه خبر کړل شي، په ځانګړې ډول هغه څوک چې د انتقام او غچ اخیستلو او زور ازمایلو په فکر کې وي او د دې امکان هم وي چې پر نورو خلکو ظلم او تیری وکړي. بناءً لازمه ده چې هغوی په ښه او غوره طریقه له دې حدیث شریف څخه خبر کړل شي، ځکه د ضرورت پر وخت د علم پټول ستره ګناه ده.

٤ .په صبر او حوصلې سره د انسان حقوق له منځه نه ځي: د قهر او غوسې په حالت کې زیات انسانان

یوه لاره نیسي چې ښې پایلې نه لري، مګر د حوصلې له برکته انسان ته ټولې لارې خلاصې وي او کولای شي چې په ژور فکر، دقت او تدبیر سره داسې لار غوره کړي چې د ټولو پکې خیر وي او هېڅ ډول نقصان او پښېمانتیا ونه لري.



## ارزونه

۱. د لوست حدیث معنا کړئ.

۲. لاندې عبارتونه بشپړ کړئ:

**لَیسَ الشَّدِیدُ بِ.......... إنَّما الشَّدِیدُ اَلَّذِي ........ نَفسَهُ عِندَ الغَضَبِ.**

۳. د حدیث شریف ګټې ووایاست.



## کورنۍ دنده

۱. د لوست حدیث شریف حفظ کړئ.

۲. د لوست د حدیث شریف د موضوع په اړوند یوه مقاله ولیکئ.



## شپږ دیرشم لوست

## بد خویونه (۱)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: (إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ، وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَبَاغَضُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا.) متفق عليه

### د کلماتو معنا

۱- إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ: له بدګومان څخه ځانونه وساتئ.

۲- لَا تَحَسَّسُوا: د نورو د بدو عملونو پلټنه مه کوئ.

۳- لَا تَجَسَّسُوا: د خلکو عیبونه مه څیرئ.

۴- لَا تَنَاجَشُوا: د توکو نرخ مه لوړوئ. په دې ډول چې خپله يې نه اخلي.

۵- لَا تَحَاسَدُوا: یوله بل سره حسد مه کوئ.

۶- لَا تَبَاغَضُوا: یو له بل سره کینه مه کوئ.

۷- لَا تَدَابَرُوا: یو له بل سره دښمني مه کوئ او اړیکې مه پرې کوئ

### د حدیث شریف معنا

له حضرت ابو هریره‌ﷺ څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ وفرمایل: یو پر بل بدګماني مه کوئ؛ ځکه چې بدګماني لوی دروغ دی. د یو او بل کمزوري مه بیانوئ، عیبونه يې مه رابرسیره کوئ او په نرخ کې دوکه مه کوئ او یو له بل سره حسد، کینه او دښمني مه کوئ. اې د الله بنده ګانو په خپلو کې سره وروڼه شئ.

## د حديث شريف حکمت

بدګوماني، د عيبونو لټول، کينه او بغض ساتل، مقاطعه او دښمني کول او نورو ته دوکه ورکول هغه ناوړه خويونه دي چې د وګړو د بدنامۍ لامل ګرځي او د ټولنې وګړي په بې ځايه ويناوو او کړنو مصروفوي، کله ناکله خبره دومره سختو دښمنيو ته ورسېږي چې فيصله کول يې هم ناشوني وي.

## د حديث شريف ګټې

۱. بدګوماني حرامه ده: بې له کوم دليله پر چا بدګومانه کېدل حرام دي، کله داسې هم کېږي چې په يو چا پورې تهمت وتړل شي چې دا يو ناروا او حرام کار دی.

په اصل کې هر انسان عادل او پاک دی او بدي يو عارضي شی دی چې په انسان کې پيدا کېږي، بايد هر انسان ته د خپل اصليت په نظر وکتل شي او تر څو پورې چې د يو انسان بدي د دلائلو او علامو په رڼا کې څرګند نشي، هغه يو پاک او عادل شخصيت دی او هېڅوک دا حق نه لري چې په خپلو اټکلونو، تشو ګومانونو او بې ځايه آوازو د چا په حق کې د بدۍ قضاوت او فيصله وکړي.




په خپلو منځونو کې د بدګومانيو د ضررونو او ورڅخه د خلاصون د لارو چارو په هکله بحث وکړئ.

۲. تحسس او د نورو د ښو او بدو پلټل ښه کار نه دی.

تحسس د خلکو د پټو رازونو پلټلو ته وايي، محسس انسان هغه چا ته وايي چې شپه او ورځ په دې لټه کې وي تر څو د خلکو د کورونو له پټو رازونو او پټو کړو وړو څخه ځان خبر کړي او بيا خپل ليدلي او اورېدلي معلومات نورو ته بيان کړي.

۳. تجسس هم ناروا عمل دی

تجسس د خلکو تر منځ د پټو رازونو را ټولولو ته وايي، تر څو نورو ته ورسول شي، تجسس د مجلسونو مصئونيت له منځه وړي، انسانان دې ته اړ کوي چې ځينې ويناوې او جايزې کړنې (په ځانګړي ډول د کور داخلي کارونه) د خاصو خلکو او مجلسونو د غړو تر منځ پټې وساتي، نو داسې ډول معلومات راټولول حرام عمل دی، لازم دي چې له داسې کار څخه ځان وساتل شي. البته د دولت د کشفي او استخباراتي شبکو له لوري د دښمنانو د دسيسو او پلانونو تعقيبول تر څو د مجرمينو

او د هغوی د طرحو مخه ونيسي، همدا راز له اداري فساد، ټولنيزو او اخلاقي فسادونو څخه ځان خبرول د دې حديث له حکم څخه مستثنی دي، بلکې په ټولنه کې ځينې وخت د داسې کارونو ترسره کول فرض کفايي حسابېږي چې له دې څخه سربېره ټولنه د لوی فساد په لمن کې لوېږي.

٤.تناجش حرام کار دی

تناجش ډېر د مزايدې په بيعه کې منځ ته راځي او هغه داسې وي چې د بازار د جنسونو د يو جنس د قېمت د اوچتولو په غرض يو کس له بل کس سره په دې خبره اتفاق وکړي چې د پېرودونکي په وړاندې به يو کس د پېرودونکي او بل د پلورونکي نقش اداء کړي او پېرودونکی به د دې لپاره چې نورو ته دوکه ورکړي يو جنس په ډېر اوچت قېمت ورڅخه واخلي چې داکار له يوه پلوه فرېب او دوکه ده او له بل پلوه د يو ډول دوکه بازو په وسيله د اجناسو د قېمتونو لوړول ټولې ټولنې ته ضرر رسول دي.




زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د نجش ((مزايدې بيعه)) تمثيل کړي.




١. د لوست د حديث شريف معنا بيان کړئ.

٢. لاندې کلمې معنا کړئ:

إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ: لَا تَحَسَّسُوا: لَا تَدَابَرُوا:

٣- د پورتنی حديث شريف ګټې په لنډ ډول بيان کړئ.




لاندې عبارتونه حفظ کړئ:

١. إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ .

٢. لَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَنَاجَشُوا.

# بد خویونه (۲)

٤- یو له بل سره کینه او حسد کول جواز نه لري:

په تېرو لوستونوکې مو د دې موضوع په اړه مفصل معلومات تر لاسه کړي دي.

٥- کینه او بغض حرام دي:

کینه او بغض دوستي او ملګرتیا له منځه وړي، د خلکو تر منځ اړیکې پرې کوي، د جګړو او اختلافاتو لامل ګرځي، له همدې امله د اسلام مقدس دین بغض او هغه څه چې د بغض لامل ګرځي، حرام ګرځولي دي.

## فعالیت

حسد تعریف او له غبطې سره څه توپیر لري؟ بیان یې کړئ.

٦-د اړیکو پرې کول او یو له بل سره دښمني کول حرام کارونه دي. دا چې اسلام سوله ایز ژوند، او د ټولنیزو اړیکو ټینګښت ته ځانګړې پاملرنه کوي، له دې امله د اړیکو پرې کول او دښمني کول د اسلام له روحیې سره مخالف کارونه دي.
په یو بل حدیث شریف کې چې بخاري او مسلم روایت کړی دی راغلي دي: (د یو مسلمان لپاره دا روا نه دي چې له بل مسلمان سره له دریو ورځو څخه زیاته مقاطعه وکړي، کله چې له یو بل سره مخامخ شي، نو یو له بل څخه مخ اړوي، په دوی کې غوره هغه څوک دی چې پر بل باندې د سلام په اچولو کې لومړیتوب وکړي).
له بل پلوه له یو چا سره د خبرو نه کول مغرضو او فاسدو خلکو ته د دې زمینه برابروي چې له یو چا څخه بل چا ته تحریف شوې خبرې ورسوي چې بالآخره خبره لویې دښمنۍ ته رسېږي.

۷-د الله تعالی بندګي

انسانان باید عاجز او متواضع وي او دا سوچ وکړي چې که هر څومره د قدرت، لوړ مقام او ډېرې پانګې خاوند وي، بیا هم د الله تعالی عاجز بنده دی، نو په کار نه ده چې د الله تعالی له حکمونو څخه سرغړونه وکړي.

۸-د ورورولۍ ژوند

په کار ده چې د مسلمانانو تر منځ د ورورولۍ اړیکې ټینګې او را ژوندی کړای شي چې له ورورولۍ څخه هدف همغه نژدې همدردي، خیر غوښتل او زړه خوږی وي، لکه: د یو بدن د اعضاوو په څېر چې د یوې عضوې په درد سره ټولې اعضاوې د نا ارامۍ احساس کوي او د هغې په راحت سره ټولې اعضاوې د راحت احساس کوي.



## ارزونه

۱. لاندې عبارتونه بشپړ کړئ:

**إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ ......... أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا ........... وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا .......... وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا.**

۲. د حدیث شریف کوم عبارت د بغض په حرمت دلالت کوي؟

۳. د حدیث شریف کوم عبارت د مقاطعې په حرمت دلالت کوي؟

٤. د حدیث شریف کوم عبارت د بدګومانۍ په حرمت دلالت کوي؟



## کورنۍ دنده

۱. لاندې عبارتونه حفظ کړئ:

**لَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَبَاغَضُوا**

**وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا.**

۲. د یو مناسب عنوان لاندې د لوست د حدیث شریف په اړه یوه مقاله ولیکئ.



## اته دېرشم لوست

# نېشه يي توکي

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ: رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ((كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ، وَمَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ)) رواه ابن ماجة.

### د کلماتو معنا

مَا أَسْكَرَ: کوم شی چې نیشه راولي

كَثِيرُهُ: ډېر يې

قَلِيلُهُ: لږ يې

### د حديث معنا

له حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ وفرمايل: هر هغه څه چې مستي او نېشه راولي، حرام دي او هر هغه څه چې زيات يې نيشه راولي لږه اندازه يې هم حرامه ده.

### د حديث شريف حکمت

نيشه يي توکي وګړي او ټولنه له خورا سختو زيانونو سره مخ کوي: لکه ديني زيانونه، روغتيايي زيانونه، ټولنيز زيانونه، اقتصادي زيانونه، سياسي زيانونه، امنيتي زيانونه، روحي زيانونه او داسې نور.

په همدې اساس په سالمه ټولنه کې بايد د نېشه يي توکو له استعمال څخه په کلکه ډډه وشي.

### د نيشه اي توکو تعريف

نيشه يي توکي هغه توکي دي چې متداوم استعمال يې د مرکزي اعصابو د فعاليت سيستم ته تغير ورکوي او زيات استعمال يې د بدني او روحي رووږدوالي لامل ګرځي.

## د نیشه اي توکو ډولونه

نیشه اي توکي هم په طبعي توګه وجود لري، لکه: اپین چې د کوکنارو له بوټو څخه لاس ته راځي او هم په مصنوعي او کیمیاوي ډول چې په لابراتوارونو کې جوړېږي، لکه: هیرویین، مورفین، کوکائین، کودین او داسې نور.

## د نیشه اي توکو ضررونه

د نیشه يي توکو استعمال ډېر جسمي او روحي زیانونه لري، په لاندې ډول يې بیانوو.

۱. د بدن د دفاعي سیستم کمزوري کول.

۲. د مرکزي اعصابو د فعالیت سستول.

۳. د زړه د ټکان زیاتوالی .

٤. د ستوني او بلعوړو سرطان

۵. د لید کمزوري کول.

٦. د وینې د فشار لوړول.

۷. په وینه کې د غوړوالي زیاتوالی.

۸. د زړه دربدل.

۹. د تنفسي سیستم خرابیدل.

۱۰. روحي تشویشونه، لکه: (خفګان، اضطراب، ځانته ناستی، په ځان باندې بې باوري او نا امیدي) پیدا کیدل.



## ارزونه

۱. د حدیث شریف معنا واضحه کړئ.

۲. د نیشه يي توکو مهم ضررونه بیان کړي.

۳. لاندې عبارتونه بشپړ کړئ:

((كُلُّ مُسْكِرٍ ........))

((مَا أَسْكَرَ كَثِيْرُهُ فـ......... حَرَامٌ))



## کورنۍ دنده

حدیث شریف له معنا سره حفظ کړئ.

د نیشه اي توکو د زیانونو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې له شپږو کرښو څخه کمه نه وي.

# نهه دېرشم لوست

## فاسده بيعه

په نولسم لوست کې مو باطله بيعه وپيژندله،اوس غواړو چې په فاسده بيعه وپوهېږو.

### د فاسد تعريف

فاسد په لغت کې: د صالح ضد دی يعني نا سم.

په اصطلاح کې: فاسده بيعه هغه ده چې په اصل کې مشروع او روا وي، خو د صفت له مخې صحيحه نه وي يعني د انعقاد شرطونه يې موجود وي، خو د صحت له شرطونو څخه يوکې کوم شرط مختل شوی وي.

مثلا په بيعه کې داسې شرط کېښودل شي، چې عقد د هغه تقاضا نه کوي او ورسره موافق نه وي، لکه په دې شرط د يو کور خرڅول چې په کرايه به يې نه ورکوي.[١]

### حکم يې

مبيعه او مال په قبض کولو سره ملك گرځي، تصرف په کې نافذ دی، خو هر يو د متعاقدينو کولای شي چې بيعه فسخه کړي او اخيستی مال بيرته رد کړي، ترڅو فساد له منځه ولاړ او د شخړو مخه ونيول شي.[٢]

### د فاسدې بيعې ځينې احکام

- په فاسده بيعه کې يواځې د عقد په کولوسره ملك نه ثابتېږي ترڅوچې له عقد سره سم د بايع په اجازه قبض شوی نه وي.
- که چېرې په فاسده بيعه کې بايع مشتري ته مبيعه تسليم کړي او په عقد کې دواړه عوضه (مبيعه او ثمن ) مال وي، پدې صورت کې مشتري د مبيعې مالك گرځي او بايع د ثمن مالك گرځي.[٣]

---

١- البحر الرائق (ج ١٦ / ص ٢٩)- مجمع الانهر - (ج ٥ / ص ٢٤٠)- رد المحتار - (ج ٢٠ / ص ١٠٠)

٢- الجوهرة النيرة: ١/ ٢٩٣

٣- الجوهرة النيرة - (٢ / ٢٦٩)- العناية شرح الهداية - (٩ / ١٨٨)

## ارزونه

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱- فاسده بیعه **لغةً** او اصطلاحاً تعریف کړئ؟

۲- د فاسدې بیعې حکم څه دی؟



## کورنۍ دنده

د باطلې او فاسدې بیعې تر منځ توپیر څه دی؟ په کتابچو کې یې ولیکئ.



# څلوېښتم لوست

## مکروه بیعه

له منعه شویو بیعو څخه مو باطله او فاسده بیعه وپیژندله، اوس غواړو چې په مکروه بیعه وپوهېږو.[1]

### د مکروه بیعې تعریف

مکروه په لغت کې: د محبوب ضد دی ، یعني بد ګڼل شوی.

او شرعاً: هغه بیعه ده چې اصلا او وصفاً روا وي، خو د یوه بل شي له کبله ورڅخه د ډېرې کولو حکم شوی وي، لکه د جمعې د آذان په وخت کې اخیستل او خرڅول.[2]

### حکم یې

په مکروه بیعه کې له قبض څخه مخکې ملکیت ثابتېږي او د قیمت ورکول واجبېږي.[3]

### د مکروه بیعې مهم ډولونه:

#### ۱. نجش

**نجش په لغت کې**: د جال لور ته د مرغانو هی کولو ته وایي.

او د شریعت په اصطلاح کې: د دریم ګړي له لورې د مال قیمت لوړول، پداسې حال کې چې په خپله یې اخیستونکی نه وي، بلکې یوازې د نورو د هڅولو لپاره یې قیمت لوړول غواړي، نجش بلل کېږي.

**ددې بیعې حکم**: دا بیعه مکروه بیعه ده. ځکه دا د یو مسلمان ورور د ضرر لپاره یوه حیله جوړول دي، له دې امله شریعت ورڅخه منعه کړې ده.

#### ۲. د ورور په بیعه باندې بیعه کول:

ددې صورت داسې دی چې دوه کسان (بایع او مشتري) د یوې سلعې (سامان) په بیعه کولو لګیا وي، بایع خپل شی قیمت کړي ، په دې وخت کې بل مشتري راشي او د دوی په بیعه کې ځان ورګډ کړي او هغه شی له بایع څخه یا په زیات قیمت او یا په هغو یادوشویو ثمنو واخلي.

---

۱- د امام صاحب رح په آند تحریمي مکروه: هغه ده چې په ظني دلیل چې شبهه پکې موجوده او ثابته وي، او حرامو ته ورنږدې وي. (فتح القدیر: ۵/۲۳۹، والبحر الرائق (ج۱۶/ص۳۰)، وتبیین الحقائق(ج۱۰/ص۴۲۳).

۲- رد المحتار - (ج ۱۹ / ص ۲۰۶)

۳- الهدایة(حاشیة) ( ۱۹). ۵۶ - بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۱۱ / ص ۴۹۳

**د دې بیعې حکم**: دغه بیعه مکروه ده، ځکه رسول اللهﷺ فرمایي: (دا پکار نه ده چې یو مسلمان د خپل ورور په بیعه کې د ځان لپاره ورګډ شي) او دا ځکه چې په دې بیعه کې بل مسلمان ورور ته اذیت او ضرر رسېږي. [1]

## ۳. د قافلې مخې ته ورتګ

صورت یې دا دی چې یو څوک د داسې قافلې په راتګ خبر شي چې ډېر سامان (لکه غنم) یې را بار کړي وي او یو سړی ورشي او ټول هغه څه ورڅخه واخلي چې قافلې راوړي وي او بیا یې ښار ته راوړي او د خپلې خوښې د قیمت مطابق یې خرڅوي او یا دا چې ښاري سړی صحرایي ته ووایي: مال دې زما سره کېږده، په مناسب وخت کې به یې په ښاریانو درته په لوړ قیمت خرڅ کړم.

**د دې بیعې حکم**: دغه اخیستل مکروه دي، ځکه د یوه روایت له مخې رسول اللهﷺ فرمایي: (تاسو د قافلې مخې ته د تجارت لپاره مه ورځئ)[2]، دغسې کول هلته مکروه دي چې د منطقې اوسیدونکي په قحطۍ اوتنګ لاسي کې وي او دا کار ورته ضرر رسوي اوکه یې ضرر ورته نه رساوه بیا ګناه نه لري. [3]

## ۴. د جمعې د آذان په وخت کې بیعه کول

د بیعې مکروهه وخت له جمعې د آذان څخه پیل کېږي: الله تعالی فرمایي: {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ }[4]." اې مؤمنانو ! کله چې د جمعې په ورځ د لمانځهَ لپاره أذان وشي، نو د الله د ذکر خواته وځغلئ، اخیستل او خرڅول پرېږدئ".

**د دې بیعې حکم**: دغه بیعه مکروه ده، ځکه له دې سره غیرمشروع شی څېرمه شوی دی چې هغه د جمعې د لمانځه او یا د خطبې نه پاتې کیدل دي.

پدې ټولو صورتونوکې بیعه مکروه ده خو عقد او تړون وربانديې نه فاسدېږي.




ذکر شوې بیعې شرعاً مکروه دي، حکمت یې ووایاست چې ولې مکروه ګرځول شوې دي؟

---

۱- بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۱۱ / ص ۴۹۰)
۲- {صحیح البخاری ۳٦۷/۵}
۳- بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۱۱ / ص ۴۸۹)
٤- سورة الجمعة

## ارزونه

أ-لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱- مکروه بیعه تعریف کړئ.

۲- د مکروه بیعې حکم څه دی؟

۳- په لنډه توگه د مکروه بیعې مهم ډولونه وښایاست.

ب-د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کیږدئ:

۱. د نجش حکم: نجش بیعه مکروه ده (    ).

۲. د جمعې د اذان په وخت کې بیعه مکروه نه ده (    ).

۳. له مکروهاتو سره عقد نه فاسدیږي (    ).

## کورنۍ دنده

د مکروهه بیعو په هکله یوه مقاله ولیکئ.



# يو څلوېښتم لوست

## اقاله

محمود له يوه دكان څخه يوه جامه واخيستله چې كله خپل كورته ولاړ، د جامې په اخيستلو پښيمانه شو، نو پلورنكي ته راغى او ورڅخه يې وغوښتل چې جامه بيرته واخلي او ده ته خپلې پيسې وركړي، د دكان خاوند دا وړانديز قبول كړ. خپله جامه يې واخيسته او ده ته يې خپلې پېسې وركړې.

### د اقالې تعريف

اقاله په لغت كې: پورته كولو، او لرې كولو ته وايي.[1]

او په اصطلاح كې: د متعاقدينو په خوښه د بيعې له مينځه وړلو ته اقاله ويل كېږي.[2]

### د اقالې د روا والي حكمت

اقاله د دې لپاره روا شوې ده، ترڅو د خلكو لپاره آسانتيا رامنځ ته شي، ځكه كله داسې پيښېږي چې يوسړى په پيسو يو څه واخلي او بيا وګوري چې دې پيسو ته اړتيا لري او كله چې يو شى خرڅ كړي بيا وګوري چې دې هغه شي ته اړتيا لري او په بيعه پښيمانه شي، نو اسلامي شريعت د اقالې اجازه وركړې ده، او د عقد مقابل لوري يې دې خبرې ته تشويق كړى دى چې هغه قبوله كړي.

### د اقالې حكم

په بيعه كې اقاله جائزه ده، ځكه له رسول اللهﷺ څخه روايت دى، فرمايي: { مَنْ اَقَالَ نادماً، اَقَالَهُ اَللهُ عَثْرَتَهُ }[3]. (څوک چې له يوه پښيمانه انسان سره اقاله وكړي (بيعه له مينځه يوسي) الله تعالى به يې ګناوې له منځه يوسي).

او بل دا چې د بيعې عقد كول د دواړو اړخونو (بايع او مشتري) حق دى، نو د دې حق هم لري چې هغه له مينځه يوسي.

### د اقالې شرطونه

١- په اقالې كې بايد دواړه اړخه راضي اوخوښ وي.

٢- مبيعه بايد داقالې په وخت كې موجوده وي، ځكه اقاله دعقدلرې كول دي، محل او ځاى يې مبيعه ده.

---

١- فتح القدير - (ج ١٥ / ص ٢٠٠).

٢- تبيين الحقائق: ١١\٦٥.

٣- رَوَاهُ اَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَصَحَّحَهُ اِبْنُ حِبَّانَ، وَالْحَاكِمُ .

## فعالیت

احمد په سلو افغانیو له محمود شخه د چای یو ترموز واخیست، له اخیستلو وروسته محمود پښیمانه شو او له احمد شخه یې وغوښتل چې خپل مال یې بیرته ورکړي ، احمد ومنله خو لس افغانی ګټه یې هم ورځخه واخیسته، اوس وواياست چې دغه معامله اقاله ده او که نه؟

## د دې باب اړوند مسائل

۱. اقاله کول د فسخې په معنا ده، مګر دا چې فسخه کول متعذر او ناشوني شي دی او هغه دا چې په مبیعه کې له قبض څخه وروسته جلا زیات والی راشي(لکه کوم څاروی چې بچې وزېږوي).

۲. که چېرې تر لومړنیو ثمنو په زیات قیمت اقاله وکړي، او یا د لومړني ثمنو د جنس په خلاف اقاله وکړي، پدې صورتونو کې دا عقد اقاله نه بلکې له سره نوې بیعه ده.

۳. د ثمنو ضایع کیدل او له مینځه تلل د اقالې کولو د صحت مانع نه ګرځي، خو د مبیعې هلاکیدل او له منځه تلل د اقالې د صحت مانع ګرځي.

## ارزونه

آ- لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ:

۱. د (مَنْ اَقَالَ نادماً، اَقَالَهُ اللهُ عَثْرَتَهُ) معنی بیان کړئ.

۲. د اقالې د رواوالي حکمت او ګټه څه ده؟

۳. د اقالې حکم څه دی؟

ب. لاندی تش ځایونه ډک کړئ:

اقاله په لغت کې: ..............................ته وايي.

او په شریعت کې: ......................................................... .

ج. د لاندې صحیحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کېږدئ:

۱. دا شرط نه دی چې د اقالې دواړه اړخه به په اقاله کولو راضي او خوښ وي ( ).

۲. دا شرط نه دی چې مبیعه دې د اقالې په وخت کې موجوده وي ( ).

## کورنی دنده

رسول الله ﷺ فرمايي: (مَنْ اَقَالَ نادماً اَقَالَهُ اللهُ عَثْرَتَهُ) دغه حدیث شریف په خپلو کتابچو کې شرح کړئ؟







دوه څلوېښتم لوست

# د مرابحې بيعه

## د مرابحې تعريف

لغتاً: مرابحه ګټې او ډېروالي ته وايي.

## او شرعاً:

په معلومه ګټه باندې د مال خرڅولو ته د مرابحې بيعه ويل کېږي.

## ددې بيعې د جواز سبب او حکمت

ډېر داسې مشتريان شته چې په سوداګرۍ کې مهارت نه لري او يا د بازار له قيمت څخه خبر نه وي، نو دا خوښوي چې له يو چا څخه په معلومه ګټه يو شی واخلي، مثلا ورته وايي: په سلو کې پنځه افغانۍ ګټه درکوم.

نو په دې طريقه په ډاده توګه بيعه کولای شي.

## د مرابحې حکم:

د مرابحې د بيعې عقد او تړون شرعاً جايز دی، څکه د جواز ټول شرطونه پکې شتون لري.

## د مرابحې د صحت شرطونه:

۱. د اخيستلو اصلي قيمت بايد معلوم وي.

۲. د ګټې اندازه بايد معلومه وي.

## د دې باب اړوند احکام

•په اصلي قېمت باندې د دوبي، رنګ ورکوونکي، طراز (نقش او نګار کوونکي) او مزي (تاوونکي)، او د حمل (بارولو، نقلولو) او خوراک پيسې ورزياتيدل جواز لري، خو د خرڅولو په وخت کې به داسی وايې: دا شی په دومره راته تمام شوی دی او داسې به نه وايي چې ما په دومره اخيستی دی.

• د امام ابوحنیفه(رحمه الله) په وړاندې که چېرې د مرابحې په بیعه کې مشتري په کوم خیانت پوه شو، نو دی اختیار لري که یې خوښه وي په ټولو ثمنو دې واخلي او یا دې بیرته  ورکړي.




د مرابحې بیعه په مختلفو صورتونو تمثیل کړئ.




لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. د مرابحې بیعه تعریف کړئ؟

۲. حکم یې څه دی؟

۳. د مرابحې شرطونه څه دي؟

٤. د مرابحې د بیعې د جواز سبب ذکر کړئ.

۵. د مرابحې دوه حکمونه ذکر کړئ.




د مرابحې د بیعې په هکله عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ؟



# دري څلوېښتم لوست

## د توليې بيعه

په تېر لوست کې مو د مرابحې بيعه وپېژندله چې ګټه پکې کېږي، اوس غواړو چې د توليې بيعه وپېژنو.

### د توليې تعريف

توليه په لغت کې: بل چا ته د ولايت او واک ورکولو ته وايي.

اصطلاحاً: په خپل سر (په اخيستل شوي قيمت) د شي پلورلو ته وايي .

په توليه کې بايع نه ګټه کوي او نه نقصان.[1]

### د توليې د بيعې د مشروعيت دليل

په يو روايت کې راغلي دي چې: ابوبکرؓ دوه اوښان واخيستل، رسول اللهﷺ ورته وفرمايل (وَلِّني أحدَهُمَا) يعنی يو اوښ په خپل سر راکړه، يعنې په هغو ثمنو (قيمت) يې راکړه چې تا پرې اخيستی دی.[2]

### د توليې د بيعې د روا والي حکمت

خلک توليې ته اړ دي، ځکه په خلکو کې داسې کسان شته چې د شيانو په قيمتونو نه پوهيږي، نو له داسې چا څخه مرسته غواړي چې هغه وربانديې پوهېږي، تر څو په ډاډه زړه بيعه تر سره کړي.[3]

### د توليې د صحت شرطونه

١- عوض او بدل بايد مِثْلِي او يا قِيَمِي وي.

٢- عوض او بدل بايد د مشتري مملوک (خپل مال) وي.[4]





### فعاليت

د توليې د بيعې مختلف صورتونه تمثيل کړئ.

---

١- رد المحتار - (ج ١٩ / ص ٤٨٤)

٢- مجمع الأنهر في شرح ملتقى الأبحر - (ج ٥ / ص ٣٢٢)

٣- الفقه الحنفي وأدلته: ٢ - ٥٢

٤- رد المحتار - (ج ١٩ / ص ٤٨٤)

## د تولیه بیعې احکام

• د امام ابوحنیفه(رحمه الله) په نظر، که چېرته اخیستونکی د تولیې په بیعه کې په خیانت خبر شي، نو بیا دې په هماغه اندازه له ثمنو څخه (قیمت) کم کړي.

• په تولیه چې به وزن (تله) او پیمانه باندې اندازه کیږی کې موزون او مکیل شیان باید بیا له سره وزن او پیمانه شي، له هغې وروسته دې مشتري ته ورکړل شي، تر څو دواړه طرفه د هغې له اندازې څخه مطمئن شي.[1]




لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

١. د تولیې بیعه تعریف کړئ.
٢. د تولیې بیعې حکم څه دی؟
٣. د تولیې شرطونه کوم دي؟
٤. د تولیې بیعې د مشروعیت دلیل ذکر کړئ.
٥. د تولیې حکمونه ذکر کړئ.




د مرابحې او تولیې فرق په خپلو کتابچو کې ولیکئ؟

---

١- مختصر القدوري: باب المرابحة والتولیة



# څلور څلوېښتم لوست

## ربا (سود)

د احمد زوی ډېر سخت مریض شو، د هغه د علاج لپاره (۱۰۰۰۰) افغانیو ته اړتیا لري ، محمود ورته وایي: زه به دغه پیسې درکړم، خو یوه میاشت پس به (۱۲۰۰۰) افغانۍ راکوې، او که را دې نه کړې، نو بیا به د هرې میاشتې په تېریدو سره ماته دوه دوه زره افغانۍ اضافه راکوې. یعنې یو کال پس به احمد له محمود څخه (۳۴۰۰۰) افغانۍ پوروړی وي.

### د ربا تعریف

ربا په لغت کې: زیاتوالي ته وایي.

او په اصطلاح کې: بې عوضه زیاتوالی ربا بلل کېږي.[۱]

### د ربا د حرمت دلیل

الله تعالیٰ ﷻ فرمایي: { وَاَحَلَّ اللهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا }.[۲]

ژباړه: او الله تجارت روا، او سود یې ناروا کړی دی.

### د ربا(سود) د تحریم حکمت

په سود کې د بیوزلو او تنګ لاسو له ضعف څخه ډېره ناوړه استفاده کېږي، د دې پر ځای چې په دوی باندې ترحم او مهرباني وشي او له دوی سره بډایان مرسته وکړي او یا کم تر کمه هغوی ته قرض حسنه ورکړل شي، د هغوی پاتې جایدادونو او شتمنیو ته یې هم سترګې نیولې وي او په پای کې یې له هغو نه هم خلاص کړي، او یا دا چې ټول عمر یې خپل غلام وګرځوي.(دغه حقیقت د جاهلیت په دوره کې وجود درلوده)

**د ربا حکم**: په شریعت کې ربا (سود) مطلقاً حرام دی.

---

۱- رد المحتار(ج ۲۰ / ص ۹۸)

۲- [البقرة/۲۷۵]

## د ربا صورتونه

۱. کله چې په مال کې د قدر او جنس دواړه صفتونه موجود شي په دې صورت کې هم زیادت په کې حرام دی او هم نسیه، لکه: د (سل گرامه) طلا تبادله په یو سل او شل گرامه طلا باندې.

۲. کله چې په مال کې له دې دواړو (قدر یا جنس) صفتونو څخه یو (زائل) شي په هغې کې زیادت روا دی، خو نسیه پکې حرامه ده، لکه: د څلورو منو غنمو خرڅول په پنځه منه اوربشو باندې چې دا لاس په لاس روا خو نسیه یې حرامه ده.




که یو څوک د یوه پسه په عوض کې یو پسه او یو وری واخلي، آیا دا سود بلل کېږي؟




لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ:

۱. په شریعت کې د ربا (سود) حکم څه دی؟

۲. د ربا او سود د حرمت حکمت څه دی؟

۳. د ربا څو صورتونه بیان کړئ.




د ربا او سود د حرمت او ټولنې ته د هغې د ضررونو په هکله یوه مقاله ولیکئ.



## پنځه څلوېښتم لوست

# قرض

رسول اللهﷺ فرمايي: { څوک چې د يو مسلمان د ژوند مشکل آسانه کړي، الله تعالی به د ده مشکل آسانه کړي...... ، او الله تعالی تر هغه د ده مرسته کوونکی دی تر هغه چې دی د خپل ورور مرسته کوي }[١].

### د قرض تعريف

لغةً: غوڅولو او پرې کولو ته وايي، په قرض کې هم يو څوک له خپل مال څخه يوه برخه پرې کوي او بل ته يې ورکوي، قرض ته سَلَف هم وايي.

شرعاً: يوه چاته د مثلي مال ورکول دي چې هغه ګټه ورڅخه واخلي او مثل يې بيرته قرض ورکوونکي ته ورکړي.[٢]

### د قرض رکن

رکن يې ايجاب او قبول دی.

**د قرض د مشروعيت دليل**: قرض په قرآن، سنت او اجماع ټولو دلائلو باندې ثابت دی.

١. **د کتاب الله دليل**: الله تعالی فرمايلي:{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ}[٣]. "اې مؤمنانو، کله چې د کومې ټاکلې نيټې له پاره تاسې په خپلو منځو کې د پور معامله کوئ ، نو هغه وليکئ".

٢. **د سنت دليل**: رسول اللهﷺ فرمايي: ((هر مسلمان چې بل مسلمان ته دوه ځلې قرض ورکړي، خدای به ده ته د يو ځل قرض په اندازه د صدقې کولو اجر ورکوي.))[٤]

د دې مبارک حديث مفهوم دادی چې د قرض پنځوس په سلو کې ورته د صدقې په شان محاسبه کېږي.

---

١- شعب الإيمان. بيهقي - (٦ / ١٠٤).
٢- رد المحتار - (ج ٢٠ / ص ٧٤) .
٣- {البقرة : ٢٨٢}.
٤- مسند الصحابة - (٢٦ / ٩٥)، ابن ماجه او ابن حبان له عبدالله ابن مسعود څخه روايت کړی دی.

۳.**د اجماع دليل**: ټول اهل علم د قرض ورکولو په جواز متفق دي.[۱]

## د قرض د روا والي حکمت

کله داسې اقتصادي ستونزه انسان ته پېښېږي چې د بل چا نقدي مرستو ته اړ کېږي او خلك ده ته په وړيا توگه پيسې نه ورکوي او دی هم د نورو صدقې نه قبلوي، نو يواځينی لاره همدغه ده چې د يوې مودې لپاره د چا نه پور (قرض) واخلي او بيا يې بيرته ورکړي.

ځکه خو شريعت قرض روا کړی دی او خلك يې دې ته هڅولي دي چې محتاجو او اړو کسانو ته قرض ورکړي.

## د قرض حکم

د قرض اخيستونکي ملکيت سمدلاسه په (قرض) اخيستل شوی مال کې ثابتېږي او د ده په ذمه (په غاړه) سمدلاسه د هغه مثل ثابتيږي چې بايد قرض ورکوونکي ته يې په راتلونکې کې ورکړي.[۲]

## د قرض شرطونه

۱.قرض ورکوونکي ته راجع شرط دا دی چې قرض ورکوونکی بايد د تبرع (احسان کولو) اهليت ولري، نو که يو مميز هلك يو چاته قرض ورکړي دا صحت نه لري، ځکه چې شريعت ده ته د داسې تصرف جواز نه دی ورکړی چې په هغه کې د ضرر احتمال وي، لکه هبه او داسې نور.[۳]

۲.قرض (قرض ورکړ شوي مال) ته راجع شرطونه دا دي:

ا- قبض کول يې.

ب-قرض ورکړل شوی شی بايد مثلي وي، لکه پيمانه کېدونکي او تلل کېدونکي شيان، يا سره نژدې شميرل کېدونکي شيان، نود داسې شي قرض ورکول چې د هغه مثل نه وي جواز نه لري، ځکه هغه بيا د شخړو لامل گرځي.[٤]

۳. په قرض باندې به گټه نه اخيستل کېږي، ځکه اصل په قرض کې د ثواب او اجر حاصلول دي او له قرض اخيستونکي سره احسان کول دي، نو که قرض ورکوونکی په قرض اخيستونکي معلومه گټه کېږدي دا جواز نه لري، ځکه دا د ربا (سود) شبهه پيدا کوي.

خو که قرض اخيستونکی په خپله خوښه له اخيستل شوي شي څخه ښه شی ورکړي، بيا کومه

---

۱- العناية شرح الهداية - (ج ۹ / ص ۲۸۸)- الفقه الإسلامي وأدلته - (ج ٥ / ص ٤۳۹)
۲- بدائع الصنائع (ج ۱۷ / ص ٤۲٥)
۳- بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع - (ج ۱۷ / ص ٤۱٦)
٤- بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع - (ج ۱۷ / ص ٤۱۸)




پروا نه لري، بلکې دا د قرض ښه ادا او ښه کار دی، رسول اللهﷺ فرمايي: {خيرالنَّاسِ أَحْسَنُهُمْ قَضَاءً}[1]، "ښه او غوره د خلکو هغه دی چې قرض په ښه توګه اداء کوي.



## فعاليت

۱- ستاسو په سيمو کې څه ډول پوروونه ورکول کېږي، ددې لوست په رڼا کې د هغه څرنګوالی په ګوته کړئ.

۲- د قرض د شرطونو په هکله له يو بل سره مباحثه وکړئ.



## ارزونه

أ.لاندې پوښتنوته ځوابونه ورکړئ:

۱.قرض لغةً او اصطلاحاً تعريف کړئ.

۲.د قرض د مشروعيت دليل څه دی؟

۳.د قرض حکم څه دی؟

٤.د قرض رکن او شرطونه څه دي؟

ب.د لاندې صحيحو جملو مخې ته د (✓) او د غلطو جملو مخې ته د (✗) نښه کيږدئ:

۱.د قرض رکن ايجاب دی فقط(   ).

۲. قرض په هر شی کې جواز لري(   ).



## کورنی دنده

د قرض عمده مطالب په خپلو کتابچو کې وليکئ.

---

۱- المعجم الکبری .طبرانی ۱/٤ ۹ ۳





# د صرف بیعه

## د صرف تعریف

په لغت کې: د یو شي د مخ اړول له یوې خوا نه بلې خوا، ته وایي.[1]

اوپه شریعت کې: صرف د نقودو بیعه ده په نقودو باندې. که یې جنس یو وي او یا توپیر سره ولري.

او له نقودو څخه مراد: سره زر، سپین زر او هغه څه دي چې د دې دواړو پر ځای دریږي، لکه مروجې پیسې.[2]

## د نومولو وجه

دغه عقد په (صرف) باندې ځکه ونومول شو چې په دغې بیعې کې غالباً هر جانب خپلې پیسې له یوه حالت څخه بل حالت ته اړوي، مثلا: ریال یا ډالر یا کلدارې په افغانۍ اړوي.

## د صرف د بیعې حکم

کله چې د صرف د بیعې شرطونه پوره شي په هغه صورت کې جائزه ده.

## د صرف د بیعې شرطونه

۱. د جانبینو له جداکېدو مخکې (له یوه او بل څخه ) د مال قبضول.

ځکه چې قیمتونه هره لحظه تغییر مومي او بیا نزاع او شخړې ته لاره هواریږي.

۲. پدې بیعه کې خیار شرط وجود نه لري، ځکه چې خیار شرط اضافي وخت ته اړتیا لري او د صرف په عقد کې تاخیر او تاجیل د شخړو سبب ګرځي.

۳. همدارنګه تاجیل به هم پکې نه وي.

## د صرف د بیعې احکام

۱. د سپینو زرو په سپینو زرو او د سرو زرو په سرو زرو خرڅول جواز نه لري، مګر دا چې د دواړو اندازه په یو شان وي، لاس په لاس وي نېټه به پکې نه وي.

---

۱- (لسان العرب)

۲- مجمع الأنهر في شرح ملتقى الأبحر - (ج ٥ / ص ٤٤٦).





۲ . که چيرې سره زر په سپينو زرو خرڅ کړل شي، پدې صورت کې تفاضل او زياتوالی جواز لري او له بيليدو مخکې قبض کول واجب دی او که چېرې د صرف په بيعه کې عاقدين د بدلينو له قبضولو مخکې سره بيل شي، نو دا عقد باطل دی .

۳ . د صرف په بيعه کې مخکې له دې چې عوضين قبض شي، تصرف کول پکې جواز نه لري.

٤ .رايجې پيسې د نقدينو حکم لري.[۱]




په بازار کې د صرف د بيعې موجوده بيلګې او نمونې يې له حکم سره بيان کړئ.




۱ . د صرف بيعه تعريف کړئ.

۲ . له نقودو څخه مراد څه دی؟

۳ . د صرف د بيعې حکم څه دی؟

٤ . شرطونه يې څه دي؟




د دې لوست خلاصه په خپلو کتابچو کې وليکئ .

---

۱- الکتاب - فقه حنفي - (ج ۱ / ص ۲۱۳)





## د سَلَمْ بيعه

محمود د غنمو بزګر دی، دی پيسو ته ضرورت لري، احمد هغه ته پيسې ورکوي، خو له هغه نه (٥٠٠) کيلوګرامه غنم اخلي،اما غنم فعلا وجود نه لري، مګر د غنمو مقدار او نور ټول مشخصات يې معلوم کړل، ترڅو چې په راتلونکې کې د دوی ترمنځ کوم اختلاف او شخړه واقع نه شي.

## د سلم تعريف

سلم په لغت کې: تسليمولو او سپارلو ته وايي.

او اصطلاحاً: په عاجل مبلغ باندې د آجل [١] مال تبادلې ته وايي. [٢]

## د سلم بيعې اړوند اصطلاحات

رب السلم: مشتري ته وايي.

مسلَم إليه: بايع ته وايي.

مسلَم فيه: مبيعې ته وايي.

راس المال: هغه مبلغ ته ويل کېږي چې مخکې بايع ته ورکول کېږي.

## د سلم د مشروعيت دليل

سلم په کتاب الله ، سنت مطهره او د امت په اجماع باندې ثابت دی:

دکتاب الله دليل: {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ}[٣].

"اې مؤمنانو، کله چې دکومې ټاکلې نيټې له پاره تاسې په خپلو منځوکې د پور د راکړې ورکړې معامله کوئ، نو هغه وليکئ".

## د سنت مطهره دليل

روايت شوی دی چې رسول الله ﷺ (د هرهغه شی له بيعې څخه منعه کړې ده چې له انسان سره موجود نه وي، خو سلم ته يې اجازه ورکړې ده). [٤]

همدارنګه پيغمبر اکرم ﷺ فرمايلي دي: که څوک سلم کوي، نو بايد د جنس اندازه (وزن او يا پيمانه په کې

---

١- (هغه مال چې د يوې ټاکلې مودې وروسته په لاس ورشي).

٢- رد المحتار - (ج ٢٠ / ص ٢٢٩)- مجمع الأنهر - (ج ٥ / ص ٣٩٧). ٨٦- {البقرة : ٢٨٢}

٣- العناية شرح الهداية - (٩ / ٣٨٥). تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق - (ج ١١ / ص ٢٥١

٤- المرجع السابق





معلومه وي او همدارنګه باید د جنس د تسلیمي وخت هم معلوم وي.[1]

## د اجماع دلیل

د ټول امت علماء د سلم په جواز متفق دي.

## د سلم د مشروعیت حکمت

د سلم په روا کولو کې د بایع د حاجت رفع کول په نظر کې نیول شوي دي او د دې پر ځای چې حاجتمند شخص سود کوونکو ته پناه ورورې او په سود ورڅخه پور واخلي، هغه له وخت څخه مخکې خپل محصول د سلم له لارې خرڅوي او له دې لارې مال لاس ته راوړي. همدارنګه ممکنه ده چې مشتري د ثمن له کم والي څخه ګټه واخلي.

**د سلم حکم**: د بایع لپاره په ثمنو کې او د مشتري لپاره په مبیعه کې د ملکیت ثابتیدل دي.

## د سلم شرطونه

د سلم بیعه تر هغه صحت نه پیداکوي تر څو په هغې کې اووه (۷) شرطونه پوره نشي:[2]

۱. جنس به معلوم وي.( چې غنم دي که اوربشې)

۲. نوعه (ډول) به یې معلوم وي. (لکه آبي یا للمي).

۳. صفت به یې معلوم وي.(لکه اعلی او ادنی)

٤. اندازه به یې معلومه وي.

٥. وخت او موده به یې معلومه وي.

٦. د ثمن یا راس المال مقدار او مشخصات باید معلوم وي.

۷. د مال د تسلیمولو ځای ټاکل چې بایع به یې مشتري ته تسلیموي، (مخصوصاً که چېرې جنس داسې شی وي چې د هغه په انتقالولو باندې مصارف راځي).

## د سلم اړوند احکام

- سلم پداسې شی کې جائز نه دی چې هغه شی د عقد له وخته د ترون تر پای پورې په بازارونو کې پیدا نه شي.
- سلم تر هغه صحت نه پیدا کوي تر څو چې ثمن ( یا رأس المال) د عاقدینو تر جدا کیدلو

---

۱- المرجع السابق

۲- المرجع السابق

مخکې د بایع له خوا قبض نه شي.

• په هر هغه شی کې سلم جائز دی چې د صفت او اندازی پېژندل یې په دقت سره وکړل شي او کوم شی چې د صفت تعین او د اندازی پیژندل یې ممکن نه وي، په هغه کې سلم جائز نه دی.



## ارزونه

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱.سلم تعریف کړئ؟

۲.د سلم د مشروعیت حکمت او دلیل څه دی؟

۳.د سلم شرطونه کوم دي؟

٤.د سلم حکمونه بیان کړئ؟

د صحیح (✓) نښه د صحیحو جملو مخې ته او د غلط (✗) نښه د غلطو جملو مخې ته کېږدئ:

۱. مسلم فیه چې د عقد له وخته نیولی د عقد تر پایه په بازارونو کې و موندل شي، سلم په کې جواز نه لري(   ).

۲. سلم تر هغه پورې صحت نه پیدا کوي، ترڅو چې د عاقدینو له جدا کیدلو څخه مخکې بایع ثمن قبض نه کړي.(   ).



## کورنۍ دنده

د سلم په هکله یوه مقاله ولیکئ .



اته څلوېښتم لوست

## رهن (ګروي)

يو کس يو بکس په مؤجل ثمن(قرض) واخيست، ولې بايع ورڅخه غواړي چې هغه خپل ساعت ورته په ګروې پرېږدي، کله يې چې پيسې راوړي، نو بيا به ورته د هغه ساعت ورکړي، دغه صورت د ګروي ګڼل کېږي.

### د رهن تعريف

### {رهن په لغت کې}

د يوه شي حبس او بندولوته وايي.

{او په اصطلاح کې}:

د يوه شي بندول دي د يوه حق د لاس ته راوړلو لپاره [١]

### د رهن د مشروعيت دليل

رهن په کتاب الله، سنت نبوي او اجماع ثابت دی:

د کتاب الله دليل: الله تعالی فرمايي:{وَإِنْ كُنْتُمْ عَلَى سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ} [٢]. "که تاسې د پرديسی په حال کې ياست او د سند ليکلو لۀ پاره کوم ليکونکی پيدا نه شو، نو د شيانو په ګرو اخيستلو معامله وکړئ".

### د سنت نبوي دليل:

له بي بي عايشې رضی الله عنها څخه روايت دی: {رسول اللهﷺ له يو يهودي څخه طعام واخيست، اوهغه ته يې د اوسپنې زغره په ګرو ورکړه}. [٣]

### د رهن د مشروعيت حکمت

د رهن د روا والي حکمت د پور کره کول، له هېريدلو، انکار، د پوروړي د افلاس (ناداری) څخه د قرض ورکوونکي د مال ساتنه، ځان ته اطمينان پيدا کول او د پور د ژر ورکولو لپاره د پوروړي هڅول دي. [٤]

---

١- رد المحتار - (ج ٢٧ / ص ٢٩١)- العناية - (ج ١٤ / ص ٤٤٧)- مجمع الأنهر - (ج ٨ / ص ٣١٠)

٢- [البقرة : ٢٨٣]

٣- {بخاری اومسلم روايت کړی}.

٤- بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع - (ج ١٣ / ص ٣٨٥)

**راهن**: د مرهون اصلي مالک ته ویل کېږي.
**مرتهن**: هغه چا ته ویل کېږي چې مرهونه ورسره ګرو (بندي) وي.
**مرهون یا مرهونه یا رهن**:
هغه شي ته ویل کېږي چې په ګرو ورکول کېږي.

## د رهن حکم

د پور د پرې کیدو تر وخته مرتهن د مرهون د حبس او ساتنې واک لري.[1]

## د رهن رکن

د ګروی رکن ایجاب او قبول دي، کوم چې د راهن او مرتهن تر منځ ترسره کیږي، لکه: نور عقود او تړونونه، نو رهن په ایجاب او قبول ترسره کېږي او په قبض کولوسره بشپړېږي.[2]

## د رهن د صحت شرطونه

۱.مرتهن باید د قبض کولو اهلیت ولري، یعنې عاقل وي.
۲.د (مرهونې) قبض به د راهن په اجازه ترسره کېږي.
۳.مرهونه باید مشاعه (شریکه) نه وي .ځکه د مشاع شي قبضول او بندول صحیح نه دي.

## د رهن احکام

۱. مرتهن دا حق لري چې له راهن څخه خپل پور وغواړي او په همدې خبره یې بندي کړي.
۲. که چیرې راهن(اصلي مالک) د مرتهن له اجازې پرته رهن خرڅ کړي. دغه بیعه د مرتهن تر اجازې پورې موقوفه ده، که هغه ورته اجازه ورکړي بیا د ده بیعه صحت پیداکوي، همدارنګه که راهن خپل پور مرتهن ته ورکړ بیا هم بیعه صحت پیداکوي.
۳. که چیرې راهن (اصلي مالک) مړ شي، نو د ده ورثه دې مرهون خرڅ کړي او د ده پور دې وربانديې پرې کړي.[3]

دودیزه ګروي (بیع الوفاء)
په دې بیعه کې داسې شرط ایښودل کېږي چې: بایع حق لري کله چې وغواړي ثمن مشتري ته بیرته ورکړي او مبیعه ترېنه واخلي.
دغه بیعه خلک د دې لپاره کوي چې له ګروی څخه د استفادې لپاره یوه لاره جوړه کړي.

---

۱- بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۱۳ / ص ۳۸٤)
۲- العنایة شرح الهدایة - (ج ١٤ / ص ٤٤٨)- الفقه الإسلامي وأدلته - (ج ٦ / ص ٦٤)
۳- الکتاب - فقه حنفي - (ج ۱ / ص ۲۱۹)




ځکه تر څو چې بایع د مشتري پور نه وي پرې کړی، مشتري (مرتهن) د مبیعې (گرو شوي مال) څخه بلاعوضه گټه اخلي.
یوه ډله د فقهاوو دغه بیعه جایزه بولي.




دودیزه گروي (بیع الوفاء) له شرعي گروی سره مقایسه او تمثیل کړئ.




أ- لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. رهن لغةً او اصطلاحاً تعریف کړئ.

۲. د رهن حکم څه دی؟

۳. د مشروعیت حکمت او دلیل یې ذکر کړئ.

٤. رکن یې څه دی؟

۵. د صحت شرطونه یې ووایاست.

ب. د صحیح (✓) نښه د صحیحو جملو مخې ته او د غلط (✗) نښه د غلطو جملو مخې ته کېږدئ:

۱- د رهن د قبض لپاره اهلیت شرط نه دی(   ).

۲- د رهن قبضول به د راهن په اجازه ترسره کېږي(   ).




د رهن په هکله په خپلو کتابچو کې یوه مقاله ولیکئ؟





# اجاره

احمد يو موټر ته ضرورت درلود، خو د موټر د اخيستلو توان يې نه درلود، له يوه شرکت سره يې قرارداد وکړ چې هره ورځ به د هغه شرکت په موټر کې خپلې وظيفې ته ځي او په مقابل کې به د مياشتې (۲۵۰) افغانۍ ورکوي، دغه عقد اجاره ګڼل کېږي.

## د اجارې تعريف

په لغت کې: اجاره اسم مصدر دی، د (اجرت) يعنې: مزد او د کار عوض ته وايي.

په اصطلاح کې: د مال په مقابل کې د يو شخص او يا د يو شي نه ګټه اخيستلو ته اجاره وايي.[۱]

## د مشروعيت دليل يې

د سنت دليل: رسول اللهﷺ فرمايي: ((مزدور ته مخکې له دې چې خولې يې وچې شي، خپله مزدوري ورکړئ.))[۲]

## د اجماع دليل

د امت په اجماع سره اجاره روا ده.

## د مشروعيت حکمت يې

اجاره ددې لپاره روا شوې ده چې د خلکو اړتياوې ورباندې پوره شي، ځکه هر يو شخص ټول هغه څه نه لري چې ورته اړتيا لري.

## مستاجِـر

( د جيم په کسرې سره)هغه څوک دی چې د پيسو په مقابل کې ګټه تر لاسه کوي.

**اجير**: هغه څوک دی چې پيسې اخلي او مقابل لورې ته کار کوي او ګټه ورته رسوي.

## حکم يې

له عقد سره سم په منافعو کې د مستاجر ملکيت ثابتېږي او په ثمنو کې د اجير ملکيت ثابتېږي.[۳]

---

۱- درر الحکام شرح غرر الأحکام - (ج ۷ / ص ٤٥)

۲- سنن کبری –بيهقی ۱۲۱/٦

۳- تبيين الحقائق شرح کنز الدقائق - (ج ١٤ / ص ۳۳۷)

## رکن يې

د اجارې رکن ایجاب اوقبول دی، په داسې لفظ سره چې په اجاره باندې د لالت وکړي.[۱]

## د اجیرانو ډولونه

۱- مشترک اجیر . ۲- خاص اجیر.

## مشترک اجیر

هغه څوک دی چې تر هغه د اجورې مستحق نه کېږي تر څو چې کار بشپړ نه کړي، لکه رنګ ورکونکی او دوبي (جامه مینځونکی).

## خاص اجیر

هغه څوک دی چې په (ټاکلې) موده کې د خپل ځان په تسلیمولو د اجورې مستحق ګرځي، که څه هم کار ورڅخه وا نه خیستل شي، لکه یو څوک چې د یوې میاشتې کار لپاره په اجوره نیول شوی وي.

البته که کار يې نه کاوه او یا په کار نه پوهیده نوبیا دې شرطنامې مطابق عقد ورسره فسخه کېږي.[۲]

## د اجارې د صحت شرطونه

۱. د تړون دواړه اړخه باید پرې رضایت ولري.

۲. معقود علیه (ګټه او منفعت چې اتفاق وربانديې شوی) باید معلوم وي، څو د شخړو مانع وګرځي.

۳. معقود علیه به حقیقتاً او شرعاً د تسلیمیدلو وړ شی وي او خاوند به يې د تسلیمیدلو وس لري، نو د داسې یو شي په اجاره ورکول چې د هغه تسلیمېدل حقیقتاً ناشونی وي جواز نه لري، لکه د تښتیدلي اوبښ اجاره کول.

٤. کومه ګټه چې په هغې تړون شوې وي، هغه به شرعاً رواګټه وي.

٥. اجوره به معلومه وي.




اعاره له اجارې سره څه توپیر لري؟ د استاذ په مرسته يې ځواب ورکړئ .

---

۱- بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۹ / ص ۳۱۰)

۲- بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع - (ج ۹ / ص ۳۱۰)

## احکام

۱.کوم شی چی په بیعه کې ثمن کیدلای شي، هغه په اجارې کې اجوره کیدلای شي.

۲. د استوګنې لپاره د کورونو او دکانونو په اجاره نیول روا دي سره له دې چې د ګټې اخیستلو هدف یې څرګند نه وي.

۳. د کرنې لپاره د زراعتي ځمکو اجاره کول جائز دي، خو تر هغه وخته عقد نه صحیح کېږي تر څو چې د کښت نوعیت روښانه نه کړای شي او یا په پیل کې دا ووایي چې هر څه چې زړه مې وغواړي هغه به کرم.

۴. د سپرلۍ او بار لپاره د حیواناتو په اجاره نیول جائز دي.[1]




د اجارې مختلف صورتونه بیان کړئ




لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ:

۱. اجاره په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ؟

۲. د اجارې د مشروعیت دلیل او حکمت څه دی؟

۳. د اجارې حکم څه دی؟

ب. د صحیح (✓) نښه د صحیحو جملو مخې ته او د غلط (✗)نښه د غلطو جملو مخې ته کېږدئ:

۱. په اجاره کې باید د ترون دواړه اړخه رضایت ولري (  ).

۲. معقود علیه چې هغه منفعت او ګټه ده، باید معلومه وي (  ).




د دې لوست عمده ټکي ولیکئ؟

---

۱- الکتاب - فقه حنفي - (ج ۱ / ص ۲٤۷)- درر الحکام شرح مجلة الأحکام - (۱ / ۳۷۳)